# څرک

نهم کال څلورمه ګڼه، پرلپسې ۸۰ ګڼه، غوايي ۱۳۹۳ل جمادي الثانيه ۱۴۳۵ق، اپریل ۲۰۱۴م

دبدخشان ولس په زيان اومصيبت کې شريک يو!

درز او حقيقت او د پېښندو وجوهات يې

طالب دولسي مقاومت نوم دی

هندي ټاکنې! راتلونکی صدراعظم او دمسلمانانو برخه ليک!

دحماس اوالفتح ترمنځ دسولې دنوي توافق په اړه انديښنې اوهيلې

امريکاله افغانستان څخه له وتوور سته چيرته ځي؟

امريکاپه مصر کې څه غواړي؟

ناکامی نظام سرمايه داری و کمونيستی

# ځرک

**علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه**

نهم کال ځلورمه ګڼه –پرلپسې ۸۰ ګڼه –غوايي ۱۳۹۳ل، جمادي الثانيه ۱۴۳۵ق –فروري ۲۰۱۴م




| مخ | عنوان | ګڼه |
|---|---|---|
| ۱ | سرليکنه ............................................ | ۱ |
| ۲ | داشغالګرو ترچتر لاندي ټاکنې نه مشروعيت لري.... | ۲ |
| ۴ | امريکاله افغانستان څخه له وتو وروسته چير ته ځي . | ۳ |
| ۵ | دثور داوومې او اتمې تاريخي پس منظر | ۴ |
| ۱۰ | امريکانسل آينده ما رابسوي تباهي ميکشاند | ۵ |
| ۱۲ | هندي ټاکنې راتلونکي صدراعظم اودمسلمانانو ...... | ۶ |
| ۱۵ | په بدخشان اوپنجشير کې حقپالونکي معر کې ........ | ۷ |
| ۱۷ | دشهيدمولوي نور قاسم حيدري ياد | ۸ |
| ۱۸ | ناکامي نظام سرمايه داري وکمونيستي | ۹ |
| ۲۰ | اهل سنت والجماعت ياناجيه فرقه | ۱۰ |
| ۲۴ | دحماس اوالفتح ترمنځ دسولې دنوي توافق په اړه .... | ۱۱ |
| ۲۸ | دپکتيکا په ولايت کې دعلم رڼااودعرفان وړانګې | ۱۲ |
| ۳۲ | تربيت ايماني کودکان ....چرا | ۱۳ |
| ۳۴ | په افغان ناروغانو دهندوستان دروغتونونو دسودا.... | ۱۴ |
| ۳۵ | داسې قيصه چې ژړااودايمان تازګي پکې نغښتې | ۱۵ |
| ۳۶ | ګلکځونه | ۱۶ |
| ۳۸ | دبنديانو دکميسيون له مسؤل سره مرکه | ۱۷ |
| ۴۴ | دزلزلو حقيقت اودپېښېدو وجوهات يې | ۱۸ |
| ۵۳ | امار کشور اسلام | ۱۹ |
| ۵۵ | دکندهارزندان دماتېدو په وياړ | ۲۰ |
| ۵۹ | امريکا په مصر کې څه غواړي ؟ | ۲۱ |
| ۶۱ | طالب دولسي مقاومت نوم دي | ۲۲ |
| ۶۳ | په افغانستان کې دعيسايت زمينه | ۲۳ |
| ۶۵ | دشهيدقاري فيض محمد سجاد ژوند ته کتنه | ۲۴ |
| ۷۱ | برماکې دبشريت ضد ستر دولتي اقدام اودنړۍ | ۲۵ |


**امتياز :**

دامتيازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير : عبيد تنوير

ليکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حميد ، جميل مېړنی او افضل محمد تراب

**ګډون :**

افغانستان : ۱۸۰ افغانۍ

پاکستان : ۲۴۰ کلداري

امريکا : ۶۰ ډالره

اروپا : ۶۰ يورو

يوه ګڼه : ۱۵ افغانۍ

۲۵ کلداري

**يادونه**

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دی.

**پته :**

تخنيکي چارې : عابد مجاهد

کابل : دځرک دفتر

srak_111@yahoo.com

بسم الله الرحمن الرحيم



# دبدخشان ولس په زيان اومصيبت کې شريک يو !

دافغانستان دمسلمان اوکړيدلي ولس دری نيمي لسيزي کړاوونه ، تراژيدی ، فقرغربت اوډول ډول ناورينونه چې ټپل شووګړو افغانانوته په ميراث پري ايښي اولاهم دغه مظلوم ولس دهغوپه لمبواوتاوونو کې سوځي او نړيوال اسلام دښمنه قوتونه له يوې نه بلې ورځي ته دغه اوراوتاو زياتول غواړي ؛ورسره په خواکې طبعي افتونواوانساني فاجعوهم له افغانانومخ ندی اړولی اووخت په وخت يې دلويوزيانونواومصيبتونوپه خونړيوڅپوکې راايساروي .

دثورمياشتي په ۱۲ نيټه دبدخشان ولايت دارګون په ولسوالی کې دغره اوځمکي دښويدو له امله چې لوی کلي يې ډوب اوپه زرهاووانسانان يې تري تم کړل ، هغه المناکه اوستره انساني فاجعه ده چې افغانان يې سخت ودردول اودتيرو دری نيمولسيزو دغمونواوويرونوباوريې نور هم وردروندکړ !

دراپورونوله مخې دځمکي اوغره دښويدوپه پيښه کې ۳۰۰سوه کورونه ډوب اوغرق شوي ، له ۲۵۰۰ سووتنوزيات خلک پکې تري تم اوله منځه تللي اوهم په زرګونو کورنی چې نوموړي سيمي ته نيږدي وي دښتواوغرونو ته له ويري تښتيدلي اودشنه اسمان لاندي شپې ورځي سباکوي .

ترټولودځوراوتاسف ځای خو دادی چې دکابل بې کفايته اوبې رحمه اداري اومحلي چارواکو ددې پرځای چې دحادثې په ړومبيوساعتونوکې هلته ځان وروسوي ، مړي اوټپيان دپيښي له ځايه راوباسي اويامتاثرينوته اوليه کمکونه اوعاجلي مرستي ورسوي ،دمحلي خلکودويناوو مطابق دوی ۲۴ ساعته هيڅ دولتي مرسته اودخالت ونه ليد، بلکې تنها دشاوخواسيموعامو وګړو له خپلو کولنګونو ، چاريو اودوديزو وسايلو سره دمرستي اوخواخوږی په نيت هلته راورسيدل ، چې هغوی هم دځمکي اوغره ددوهم ځلي حرکت له امله دپيښي په ځای کې راګيراوزياتره يې ترانبارونوخاورواوډبرولاندي شول .

دکابل ناترسه چارواکوخويوه بله ناروا داهم کړي چې دپيښي دقيق ارقام اودزيان کچه يې تر۲۴ ساعته ميډياته نه په ډاګه کوله ترڅوپه نړيواله سطحه داورګون له انساني فاجعي سره همدردي وشي اوعملي مرستي راورسيږي ، دغه ډول دکريم خليلي په مشري چې کوم دولتي پلاوی سيمي ته ولاړ ، هغوی هم پرته له څوکارتنوچاکليټونو اوبيسکوټو نورهيڅ هم زيان من شووخلکو ته ورنکړل ، بلکې ټوله حواله اوبروسه په خارجي مرستووه چې کيدای شي دنيااوالوضميرراوبښ شي اويوڅه مرستي راواستوي.

خوافغانان پوهيږي چې ددغورسمي شرمښانو اوليوانوپه وجوداوشتون کې به دبدخشان لري پرتي اومصيبت ځپلي نقطي ته څه ډول کمک اوپه کومه اندازه مرسته له داړه مارانو راتيره اوورسيږي ؟

مونږ په داسې حال کې چې دارګون دغره ښويدلو پيښه يوه لويه انساني فاجعه او المناکه حادثه بولو، له قربانيانواوورسته پاته کورنيواودوستانوسره دغه سترغم اودرد شريک اوځان ورسره يوبرابرشميرو ، الله تعالی دې دپيښي په قربانيانوخپل بې شماره رحمتونه نازل کړي ، متاثرينو اوټپيانوته دې لوی رب جل جلاله کامل عافيت اوپه دنيااواخرت کې ښه عوضونه نصيب ورګرځوي . امين

# داشغالګرو تر چتر لاندې ټاکنې

# نه مشروعیت لري او نه بقا !

عبید تنویر

دحمل د۱۶ نیټې ټاکنې پرته لدې چې دتقلب اوجعل بې شمیره شواهدواو مدارکوته یې کومه اشاره وکړو،دبطلان لپاره یې همدغه یوځو ټکي اودلائیل هم کافي اوشافي دي چې ووایو، داشغالګروترچتر اودنړۍ په سطحه دیوه فاسدرژیم ترمستقیمي څارني اولاسوهني لاندي ټاکني په هیڅ د لیل مشروعیت او بقا نلري او نه هم افغانان ددې هیله لري چې دغه ډول مزدوري ټاکني به دمزدورد ځیروپه رول کې ددوی کوم درددوا اوکنډوبه یې ډک کړای شي !!

کـه څـه هـم دانتخاباتو پـه ورځ خـارجي قـواوو اوداخلي عسکروچې لـه پولیسواوار بکیوسره یې شمیرنیږدې پنځـولکوتـه رسیده کلک اوهرډول امنیتي تدابیرنیولي ووچې ګواکي ۱۲ میلونه افغانان به پرته له کومي ویرې اوتشویش نه په ټاکنوکې برخه اخلي؛ خـو مجاهدینوسره لـه دغـو ټولواحضاراتواوامنیتي تـدابیروبیاهم وکـولای شـول چـې دټـول هیواد پـه سـطحه پـه انتخابـاتي مراکزوشاوخوا یونیم زر کارنده بریدونه ترسره کړي اودمجاهدینو دهمدغـه پـوځي حـساسیت اوکلـک موقـف نتیجـه وه چـې دشرمیدلوټاکنوپه صندوقونوکې د۳۵ میلوني هیواد لـه جملي نه صرف ۲ میلونوخلکوخپله رایه وکاروله اوپاتي رایې ټول دتقلب اوجعل پـه مټ پـه صندوقونوکې وکارول شوې اوهرکاندیددخپل زور اوبدماشی په تناسب صندوقه ډک اومرکزتـه یې ولیږل، چې ددغه ستر فریب اودوکي شواهددومره څرګنداوعلني دي چې دهر افغان موبایل اوکمپیوټر وګوري نو یوډله خلک به په ډیرې سپین سترګي سپیني پاڼي ټا په کوي او په صدوقونوکې یې اچوي.

دحیرانتیاوړ خبره خوداوه چې دانتخاباتودورځې په سهار (۹) بجوچې لاهم په رشوت اخستل شوي خلک په دې فکرکې ووچې خپلـه رایـه وکـاروي کنـه اودرایـو مراکزوتـه ولاړشي اوکنـه، خـو دانتخاباتو دکمیسون مشر پـه هماغه ړومبیـو شیبوکې پرتـه لـه کوم تحقیق اوسنجشه اعلان وکړچې ۷ میلونو افغانانوپه شفافو! ټاکنوکې برخه واخیسته، خوچې کله درایودشمیرلوموضوع راغله نو په لسو ورځوکې یې ایله دلس فیصده رایو اونتایجواعلان هم ونشوکړای، یعني دانتخاباتوپه ورځ یې دومره پرمختللي تخنیک اوماشین په لاس کې ووچې دیوه ساعت په اوږدوکې ۷ میلونه رایه اچوونکي یویووشمیرل، خودنتایجوپه شمیرلوکې بیا میاشتي واړولي..

دحمل د ۱۲نیټې د پردې پالو انتخاباتودعدم مشروعیت یوبل ښکاره دلیل داوه چې په دغه ورځ پـه افغانستان کې چلیدونکو رسنیواومطبوعاتي سرچینودیوه پلان شوي اوترتیب شوي حرکت له مخي په یوه غږ اویوه نظر دټاکنوبریالیتوب ته ځانونه وقف اوچمتو کړي ووااوټولوداکوشش کاوه چې له نصب شوومکارو لوډسپیکرونو، حنجرواوسکرینوڅخه یې صرف مثبت ټکي او انعکاسات راووځي، تاسي باوروکړی چې په دغه ورځ له یوې راډیو، تلویزون اوسیاسي مبصر څخه هم داسې څه خپاره او راونه وتل چې دانتخاباتو په کمیو اونقصاناتوڅه بنیادي تبصره ولري اودمجاهدینو دبریدونوپه باب خلکوته حقایق وړاندې کړي؟

که دغو تالیښتو مبصرینواو نطاقانوچې دحمل د۱۶ نیټې ټاکنې یې له هره اړخه مثبتې اوشفافې ارزولې خپل ضمیر او وجدان په ډالرونه وي پلورلی، نوبیا په کوم منطق او استدلال هغه ټاکنې چې داشغال په غوبل کې ترسره شوې او دافغانستان دتباهی اوبدبختیو ددوام مهم لوبغاړي او او دامریکا دهڅولونو نغاره چیان ورته کاندید شوي وو دهغوپه شتون اورول کې دي ټاکنې ازادي او دافغانانو دخوښې انتخاب وبلل شي اویادي ۲ میلونه خلک د ۳۳ میلونه خلکودرایو استاځیتوب وکړای شي!!

په دې خبره کې شک نشته چې دافغانستان قاطع اکثریت دانتخاباتو په ورځ له خپلو کورونو راونه وتل، بلکې تنهاهغو خلکو په انتخاباتو کې یواندازه ګډون وکړچې یا په ښارونو کې اوسیدل، یا له مخکې څخه زرخریدشوی وو او یاهم دولتي مامورین او د اردو اوپولیسو په لیکوکې شامل پرسونل وو، په لری پرتو سیمو، دولایتونو په ولسوالیو کې په سلو کې ۲ فیصده خلکوهم برخه نه لرله، همدغه علت ووچې دانتخاباتي کمیسون په وینا ۱۰۰۰هغه مرکزونه چې دانتخاباتو په ورځ باید پرانیستل شوي واي همداسې بنداومسدود پاتي شول ، خلاصه داچې په دغو زرو مرکزونو کې اصلاټاکنې ونشوې !!!

لـه بلـې خوادکاندیـدانو شـعارونو تـه چـې دکمپاین په ورځوکې کې له خولې بادول وکتل شي هرڅـوک پـرې پوهیـدل چې ټولـو صـرف دروغ صادرول اوهوایې کچ اومیچ کوله، چابه ویل چې که دی کامیاب شي، نوفلاني ولایت به شیش محل جوړکړي ،فلاني قوم ته به دومره ونډه اوڅوکي ورکړي اویابه په فلاني سیمې کې دومره صنعتي فابریکې جوړې کړي، خوچې ددوی سابقه او تیرې لوټمارې به په ذهن کې راوړل شوه نوخبره به سړې ته برعکس رامخې ته شوه چې که دغه کاندید په ریښتیاهم واک ته ورسیږي، نوړومبی کاربه یې دفلاني ولایت چورکول اوځه چې له نوروغلواوداړه مارانو پاتي دي هغه په بډه وهل وي، دقوم دخدمت په ځای به له هغواسکلیټ اوپوستکي راباسي!!

خوکوم شی چې دکاندیدانو په خبروکې ډیرواضح اودکمپاین چلولو مهم هدف یې هماغه نشرول وو او دټولوکاندیدانو اتفاقي ټکي وو، هغه له امریکاسره دامنیتي تړون ژر اوعاجل لاسلیکول ول و .

یعني ددغو ۱۲ کاندیدانوله جملې څخه دیوه په خبرواوموقف کې هم داتوري رانغلل چې دتړون په فلانی ماده دوی دغه اعتراض اونیوکه لري اوترمیمول یې غواړي ، بلکې دټولو په خولوکې همداتوري لیکل شوي ووچې العیاذبالله دافغانانو نجات اوسوکالي په دې کې ده چې له امریکاسره هرڅومره ژرچې کیدلای شي تړون امضاکړل شي !!

که څه هم خندنی ټاکنې له ټول فساداودرغلیزې بڼې سره وشوې، خوبیاهم باداران اوګوډاګیان سره پرې جوړرانغلل اوبیایې وپتیله چې ټاکنې به دوهم پړاوو ته ځي اوداواربه دوه معلومه الحاله تالیښتي ډاکټرعبدالله اواشرف غني یودبل په وړاندې دریږي .



خو خبره لکه لمر غونډې روښانه ده ،چې که څلورځله هم ټاکنې نوروپړاوونوته ولاړې شي، هیڅ نتیجه اوپایله نلري ترهغوپوري چې په کابل دامریکاسفارت نتایج تایدنکړي اودخپلې مرضی مطابق کس دکابل ارګ تـه معرفـي نکـړي، څکـه همدغـسې کـارد۲۰۰۹ کـال پـه ولسمـشریزو! ټـاکنوکې هـم وشـوچې دبندوصندوقونو اودرایی دشمیرلوله لاري دکابل ولسمشرمنتخب نشو، بلکې دامریکا پـه سفارت کې دغه موضوع دبندودروازو ترشاحل اوورستی پایلي اوحل رامخې ته شو .

# امریکاله افغانستان څخه له وتووروسته چیرته ځي ؟

عبیدت

دواشنګټن ټایم ورځپاڼه په خپلې یوې ورستی مقالي کې د(
خدای په امان افغانستان، سلام افریقا) ترعنوان لاندې لیکلي :

په داسي حال کې چې له افغانستان څخه دامریکایي قواوو
دخروج ټاکل شوی مهلت رارسیدونکی دی، بریښي چې امریکایانو
دخپلو قواوو داستقرار اوتمرکز لپاره دافغانستان په ځای
افریقاترهدف لاندې نیولي .

دامریکایي پوځ یوه قومندان نوموړي ورځپاڼي ته ویلي : موږ
نور افغانستان دخپلو قواوو دفعالیت اوپه جګړه کې دښکیلتیا مناسبه
ساحه نه وینو،اوپریکړه مو کړې چې د۲۰۱۴ کال ترپایه امریکایي
عسکر دافریقا براعظم ته نقل کړو.

دامریکاد۴۴۹ هوایي کنډک مشر سرهنګ کلي پسمور، چې
دافریقادجیبوتی هیواد دلمونیر په هوایي ډګر کې یې له «استارز اند
استرایپس» مجلې سره چې امریکایي پوځ یې تمویلوي ویلي : موږ به
په تدریجي ډول له افغانستان څخه خپل پوځي اولوژستیکي تدارکات
اووسایل دشرقي افریقادجیبوتي هیوادته رانقل اوځای پرځای کړو.

پسمور زیاته کړې، تراوسه زموږ عسکر جیبوتی ته ندي راغلي،
خو دتجهیزاتو دانتقال لړی موپیل شوي، دغه امریکایي قومندان وایي،
په افغانستان کې جنګیدلي امریکایي پوځیان که څه هم په ذهني
لحاظ دبلي پوځي دندي پوره وړ تیانلري ، بلکي ایجاب ددې خبري
کوي چې هغوی مناسبه درملنه ووینې ، خو بیابه هم هغوی ړومبی
افریقاته راوړل کیږي اوبیاکیدای شي دنورو پوځیانو په راتګ سره
دوی خپل هیوادته بوتلل شي .

پسمور ددې پوښتني له جواب څخه ډډه وکړه چې ایاامریکایي
قواوي به دجیبوتي په هیوادکې پوځي اواستخباراتي عملیات هم
ترسره کوي، خو دومره یې وویل چې نوموړی هیواد دوی ته حیاتي
ارزښت لري او کیدای شي موږ په جیبوتي کې څو پوځي اډې
اودقومندي مراکز ولرو.

دغه امریکایي قومندان له افغانستان څخه دعسکرو دوتلو په اړه
وویل : که څه هم په نوموړي هیوادکې جګړه پای ته نه ده رسیدلي
اوطالبان هلته دیوه مهم تهدیدپه شکل شتون لري، ولې موږ په
افغانستان کې نیږدې څلور لکه اردو وروزله اوس هغوی ته لازمه ده چې
دامریکایي عسکروپه ځای هلته جګړه پرمخ بوځي .

دامریکایي قومندان له پورته څرګندونو ښکاري چې امریکاپه
افغانستان له خپل هرډول پرمختګ څخه مایوسه او دې نتیجي ته
رسیدلي چې په افغانستان کې امریکایي شتون دهغو تاوان دی، څکه
۱۳ کاله امریکایانو هلته هرډول جنګي ستراتیژیاني پلي کړي، خو له
زیان اورسوایي پرته یې کوم بل انجام نه درلود.

امریکایانو دافغانستان داشغال په مهال صرف افغانانو ته اداري
فساد، اخلاقي انحراف او بې ثباتي راوړه او دافغانستان سرشاره قیمتي
زیرمي اوشتمنی یې په مرموز ډول چور اوچپاول وګرځولي؛ اوس دغه
اسلام دښمنه طاغوت غواړي چې ځان دافریقالویې ځمکي ته ورسوي او
دافریقادبې چاره ولس په سرپېتو اومالامالو شتمنیو او بیساریو کانونو
باندې خیټه واچوي .

دیادوني وړده چې امریکایان له افغانستان ورسته کوم هیواد
ترهدف لاندې نیولی ، هغه جیبوتي دی ، جیبوتي ، دافریقا په شاخ کې
پروت یومسلمان نشینه هیواددی چې ۰۰۰ □ ۴۰۰ وګړي او ۲۳، ۰۰۰
کیلومتر مربع مساحت لري ،همداډول ، دملګرو ملتونو په غړیتوب
سربیره دافریقااوعربي اتحادیې عضویت هم لري، رسمي ژبې یې عربي
اوفرانسوي دي .




# دثور د ۷ مې او ۸ مې

# تاريخي پس منظر

قـــاري حبيب : ..........................

لويې پيښې او حادثات ناڅاپي يا تصادفي نه رامنځته کيږي ، بلکې له وړاندې منطقي علل او مقدمات لري ، دثور ۷ او ۸ زموږ دهيواد په تاريخ کې دوه مهمې پيښې دي ، نن سبا په دې پيښو ګرم بحثونه روان دي ، څرنګوالی او عواقب يې څېړل کيږي مګر ډېر لږ خلک ددې پيښو تاريخي عواملو او مقدماتو ته سر ورښکاره کوي ، چې بالاخره دا پيښې څرنګه ، چا او ولې رامنځته کړه ، علتونه يې کوم او عوامل يې چير ته وو .

په دې بحث کې دافغانستان ديوه وګړي په حيث غواړم د ثور داوومې او اتمې په تاريخي پس منظر مختصره رڼا واچوم تر څو ددې پيښو په اړه نسبتا مناسب قضاوت ، استنتاج او پنداخيستلو ته لاره هواره شي .

د ۱۹۱۷ م کال په اکتوبر کې روسي بلشويکانو د لينن په مشرۍ انقلاب وکړ او دشوروي اتحاد په نامه يي د کمونيزم په مفکوره بناء يو ستر کمونيستي حکومت رامنځته کړ ، کمونيستي شوروي اتحاد چې د روسيې د پخوانۍ تزاري امپراطورۍ ټول مستعمرات په ميراث ورپاته وو په اسيا او اروپا کې يي ديو خونړي زبرځواک په توګه تبارز وکړ ، کمونيستانو نه يوازې د کمونيستي مفکورې د ترويج نړيوال کمپاين پيل کړ بلکې له فکري اشغال سره يوځای يي دعملي سياسي اشغال عمليه هم تعقيبوله ، افغانستان دشوروي اتحاد په جنوبي ګاونډ کې پروت يو اسلامي هيواد وو دافغانستان په جنوب کې دشورويانو دوه ستر اهداف پراته وو ، دهند براعظمګی چې د کمونيزم لپاره دچين غونډې يو مناسب بستر بلل کيده ، دغه راز دهندي بحر تودې اوبه چې له لارې يې شورويانو کولای شوای په برياليتوب سره دمنځني ختيځ دلاندې کولو او اروپايي استعمار ګرو سره دمقابلې لپاره استفاده وکړي ، خو په جنوب کې دشورويانو ددې سترو اهدافو په مخکې افغانستان پروت وو ، د عملي کمونيزم بنيان ګذار ولاديمير لنين په ۱۹۱۹ ميلادي کال کې ويلي وو : افغانستان دمنځنۍ اسيا کيلي ده چې له پامه نه شي غورځول کيدای او دا هيواد به دهند پخوا زموږ دپر مختګ لپاره دسويز کانال غونډې مهم رول لوبوي .

له همدې ځايه ويلی شو چې په افغانستان د کمونيزم يرغل د ۱۳۵۷ دثور له اوومې نه دی پيل شوی بلکې له دې نيټې تقريبا شپږ لسيزې وړاندې له هغه مهاله پيل شوی چې په روسيه کې کمونيستانو واک ټينګ کړ او نيت يي درلود دهند او ارام سمندر په خوا دسوق الجيش په مهال له دې خاورې استفاده وکړي .

له هماغه مهاله دشوروي اتحاد کمونيستي مشران پر لپسې په دې هڅه کې وو چې دمنځنۍ اسيا او ختيځې اروپا د هيوادونو غونډې افغانستان هم د کمونيزم په رنګ ورنګوي ، دهمدې لپاره يې له افغانستان سره دګاونډيتوب له سياسي ، تجاري ، اوفرهنګي اړيکو څخه استفاده پيل کړه ، د افغانستان مجبوريتونو او دافغان چارواکو غفلت د کمونيستي نهال د غرس او بيخ نيولو لپاره زمينه برابروله ، بل اړخ ته دافغانستان په شاهي خاندان کې داخلي تنافس دې ته زمينه

برابره کړه، چې افغان کمونیستان دیوه مخکښ سیاسي گوند په حیث تبارز وکړي.

دافغانستان پاچا ظاهرشاه له لومړۍ ورځې هسې په نوم پاچا وو چې دصلاحیتونو له اړخه ځواکمن خلک یې ترونه هاشم خان او شاه محمود وو، په ۱۹۵۳م کال کې دشاه محمود له استعفاء وروسته د ظاهرشاه دتره زوی او ترده کشر داودخان صدراعظم شو، ظاهرشاه که له دې وړاندې دخپلو ترونو دصدراعظمۍ بې حده صلاحیتونه زغملای شوای نو ښایي علت به یې دهغوی مشر توب وو، مگر اوس چې ترده کشر داودخان د ده د ترونو په صلاحیت کار پیل کړ دظاهرشاه لپاره دزغم وړ نه وو، ظاهرشاه نور دانه شوای زغملای چې اوس دې هم دی یوازې په نوم پاچا وي او واک دې صدراعظم وچلوي په همدې خاطر یې اراده وکړه چې داودخان له پښو وغورځوي.

ظاهرشاه په ډېر مهارت تر دې عنوان لاندې چې اوس دمطلقه شاهۍ دوران تیر شوی دی، هرځای انقلابونه روان دي، ددې لپاره چې دانقلاب مخه مو نیولې او تریوه حده مو مشروطیت تمثیل کړی وي، باید چې دولسي رایو په اساس ټاکلی پارلمان جوړ کړو، پارلمان به صدراعظم انتخاب کړي او ټول اجرایوي واکونه به ولري، په دې عنوان یې داود تطمیع کړ چې دانتخاب له لارې صدراعظمي او اجرایوي حاکمیت ترلاسه کړي، خو له بلې خوایي په همدې تړاو په جوړ شوي اساسي قانون کې ولیکل چې دشاهي کورنۍ کوم څوک وکیل، وزیر یا صدراعظم نه شي کیدلای، په دې توگه ظاهرشاه داود خان له مخې لرې کړ او دنوي اساسي قانون په رڼا کې یې احزابو او پارلماني انتخاباتو ته مخه ور کړه.

په همدې مهال کمونیستي افکار په زیرزمیني ډول خوراپراخ شوي وو، نوځکه خو کله چې احزابو ته اجازه ورکړل شوه تر ټولو لومړی گوند چې تبارز یې وکړ دکمونیستانو دخلق دیموکراتیک گوند وو چې له وړاندې یې هسته جوړه شوې وه.

په همدې مهال په نړیواله سطحه کمونیزم، غربي لیبرالیزم او اسلام د دری گونو نظریو په توگه سره د مقابلې په حال کې وو، څرنگه چې هر عمل عکس العمل لري دنړیوال ستر تقابل په تناظر کې په افغانستان کې هم دکمونیستي افکارو په خلاف اسلامي افکاروته متعهد گوندونه رامنځته شول، مگر څرنگه چې شاهي خاندان داسلامي فکر په نسبت نویو مبتذلو افکارو ته ډیر میلان درلود همدالامل وو، چې له اسلامي مبارزینو څخه په ویره کې وو او پرلپسې یې کوښښ کاوه چې اسلامي سیاسي فعالین سر کوب کړي.

له بله اړخه داود خان چې ظاهرشاه له صدراعظمۍ غورځولی وو دایې مناسب فرصت باله چې ظاهرشاه له شاهۍ وغورځوي، نوموړي ددې هدف لپاره هڅه پیل کړه ترڅو له کمونیستانو استفاده وکړي، نوموړي دکمونیستانو د قوت او چاغوالي لپاره ستر کار وکړ، تردې چې په ۱۳۵۲ هش کال کې یې په حکومتي دستگاه او پوځ کې دموجودو کمونیستانو په مټ په ظاهرشاه کودتا وکړه او ظاهرشاه یې خلع قدرت کړ.



داهغه وخت وو چې افغان کمونیستان دبل هر وخت په نسبت په مستۍ کې وو او ځان یې هدف ته نږدې باله، خو داود خان چې دکمونیستانو له قدرت سره جوړ نه وو یوازې یې دوسیلې په حیث ترې استفاده کوله په وروستیو کې یې کوښښ پیل کړ چې کمونیستان له مخې لرې کړي، خو داهغه مهال وو چې دشوروینانو دملاتړ او داود خان دزمینه سازۍ له امله اوبه تر ورخ تیرې شوې وې نوځکه ددې په ځای چې داود خان خپله پروژه په سمه توگه پای ته ورسوي، کمونیستانو گول وواهه او داود خان چې کمونیستان یې وسیله بلل خپله دوسیلې په حیث له استعمال وروسته د ثور په اوومه دکمونیستانو لخوا په ارگ کې له ټولې کورنۍ سره یوځای ووژل شو.

دثور په اوومه دکمونیستانو عملي حاکمیت او د سوسیالیستي پروګرامونو پیل له وړاندې پیل شوی عکس العمل / اسلامي مبارزه دضرورت او شدت وروستي حد ته ورسوله ، د افغان مسلمان اولس دیني مشرانو او جهادي مبارزینو درک کړه چې که دکمونیزم په خلاف په ټول وس مبارزه ونه کړي ، نو شاید افغانستان هم د ماوراٴالنهر ، قفقاز او ترکستان په سرنوشت ګرفتار شي ، له همدې امله یې دکمونیستانو په خلاف مسلح جهاد پیل کړ ، دکمونیزم په خلاف جهاد چې وروستي دشوروي لښکرو په راتګ سره لا پسې توند شو څوارلس کاله یې دوام وکړ تر دې چې شورویان مات شول او په تعقیب یې د ۱۳۷۰ هـ لمریز کال په وروستیو کې وروستی کمونیست رژیم هم دحتمي سقوط منلو ته اړ ایستل شو .

دغه مهال د کمونیست رژیم مشري د ډاکټر نجیب په غاړه وه ډاکټر نجیب چې ډیر عمر یې داستخباراتو په سازمان کې کار کړی وو یو باور نه کوونکی او شکاکي انسان وو ، د ګوند او نظام په دننه کې یې همیشه هڅه کوله چې ټول واک له ځان سره وساتي او خپل مخالفین له منځه یوسي ، په دې لړ کې نوموړی حتی دخپلو نږدې ملګرو په وفادارۍ هم شکمن وو ، چې دې حالت نوموړي ته د شاهنواز تني دکودتا اوو روسته دشمال بې اطاعتۍ غونډې لویې ستونزې ورپیدا کړې .

نجیب چې د خوست غونډې زیاتره ستراتیژیک ولایات یې مجاهدینو ته بایللي وو دغه مهال له دې ویرېده چې هسې نه د نظام له منځه ضربه وخوري ، نوموړي ته د کمونیست رژیم په داخل کې خلقي – پرچمي دغه راز ژبني او سمتي تعصبات له وخته معلوم وو ، نوځکه یې هڅه کوله هر هغه تن له واکه وغورځوي چې خطر یې ترې محسوساوو .

د نجیب همدې پالیسیو دده ګڼ شمیر فکري مخالفین په غوسه کړي او بغاوت ته اماده کړي وو او حالت دې ته رسیدلی وو چې په نږدې راتلونکې کې شاید کمونیستي حکومت دمجاهدینو له تعرض پرته دداخلي انفجار له امله سقوط وکړي .

خو بله غاړه دکمونیزم ضد مجاهدینو په ډیر پاشلي حالت کې قرار درلود ، دوه لسیزې وړاندې چې جهادي مشرانو لکه برهان الدین رباني ، شیخ جمیل الرحمن ، مولوي حبیب الرحمن ، سخي دادفایز ، ګلبدین حکمتیار ، مولوي جلال الدین حقاني ، مولوي نصر الله منصور ، قاضي امین وقاد ، احمدشاه مسعود، مولوي فتح الله او نورو چې له کمونیستانو څخه هجرت وکړ نو د پیښور په ګلبهار کې په یوه حویلۍ کې اوسیدل ، په یوه دسترخوان یې خوراک کاوو او په یوه تکبیر یې لمونځ کاوو .

مګر اوس چې دوی خپل هدف ته درسیدلو په حال کې وو ترمنځ یې پخوانۍ ملګرتیا او نږدیکت په کامله معنی له منځه تللی وه ، مجاهدینو د خپل جهاد په وروستۍ مرحله کې هغسې اتحاد او هماهنګي نه درلوده په کوم یووالي چې دوی دغه مبارزه پیل کړې وه ، نوځکه که څه هم کمونیستي رژیم په خپله نړیده خو مجاهدین ونه توانیدل چې دغه وضعیت په سمه توګه کنترول کړي .



د ۱۳۷۰ هـ ش کال په جدي کې ډاکټر نجیب چې د اردو مشهور جنرال بابه جان دبلخ والي جنرال جمعه ، جنرال خان اغا او نوریې له دندو ګوښه کړي وو ، دجدي په ۲۵ یې فرمان صادر کړ چې له مخې یې دحیر تان د فرقې قومندان جنرال مؤمن دغه راز دجنرال هلال الدین او عبدالوهاب په نامه دشمال دوه نور قومندانان هم له دندو ګوښه کړل .

کله چې دغه فرمان جنرال مؤمن ته ورسید نوموړي بغاوت پیل کړ او دشمال په نورو قومندانانو لکه رشیددوستم ، غفار پهلوان ، رسول پهلوان اودکیان د ۸۰ فرقې په قومندان حسام الدین باندې یې هم غږ وکړ چې باید په دې بغاوت کې ورسره شریک شي ، او دخپل سرنوشت په اړه خپله تصمیم ونیسي .

دغه کمونیستي جنرالان یوه یې هم اسلامي احساس نه درلود او نه یې له نجیب سره ورانه د جهادي احساس له مخې وه ، دوی خپلې ګوندي عقدې او جنجالونه سره درلودل ، خو ددې لپاره چې دنجیب په وړاندې مقاومت وکړای شي دمجاهدینو ملاتړ ته اړ وو و نوځکه یې په پټه دمجاهدینو یوه قومندان احمدشاه مسعود ته استازی ولیږه او ورسره دایتلاف غوښتونکي شول .

د جنرال مؤمن په ډله وروسته دوستم او نور هم ورګډ شول او له مجاهدینو سره یې مخامخ لیدنې کتنې پیل کړې ، د همدې کال دحوت له مخې دبدخشان ، تخار او قندوز دنیولو کار جمعیت اسلامي ته وسپارل شو ، سمنګان ، جوزجان او سرپل دوستم په غاړه واخیستل ، دفاریاب دنیولو مسؤلیت غفار پهلوان او رسول پهلوان ته وسپارل شو او دمزار په اړه پریکړه وشوه چې دوستم به دغرب لخوا ، دعلم خان او استاد عطاء په مشرۍ مجاهدین به دجنوب لخوا او دجنرال مؤمن قواوې به دشمال لخوا په مزار شریف حمله کوي ترڅو دا ښار ونیسي په دې توګه دافغانستان شمالي ولایت ددې په ځای چې مجاهدینو فتحه کړي وای ، د دوستم ، جنرال مؤمن ، غفار پهلوان ، رسول پهلوان جعفر نادري ، جنرال حسام الدین او نورو هغو کمونیستي جنرالانو لاس ته ولویدل چې له وړاندې هم ورباندې دهمدوی سلطه وه .

احمدشاه مسعود ، استاد عطاء ، انجینر نسیم مهدي او د مجاهدینو ځینو نورو قومندانانو په داسې حال کې له دغو کمونیستي جنرالانو سره ګډ کار پیل کړی وو چې دنورو جهادي مشرانو توافق او هماهنګي ورسره نه وه ، دمجاهدینو له جملې ځینو د کمونیستي تشکیلاتو لوری بدلول او له مجاهدینو سره یوځای کیدل یوه لویه لاسته راوړنه بلله ، حتی حضرت صبغت الله مجددي د جنرال دوستم لوری بدلول دحضرت خالدبن ولیدله اسلام راوړلو سره تشبیه کړل ، خو یوشمیر نورو بیا دا کار ناسم باله او غوښتل یې چې کمونیستان باید په جهادي صفوفو کې خلط نه شي.

همدا اجتهادي اختلاف دمجاهدینو ترمنځ دنزاع په اساسي ټکي واوښت ، احمدشاه مسعود غوښتل د کابل دنیولو لپاره هم دمزارشریف نسخه وکاروي ، دهمدې لپاره یې په جبل السراج کې د شورای جهادي په نامه یوه شورا جوړه کړه چې مسعود یې مشر جنرال دوستم او عبدالعلي مزاري یې مرستیالان شول .

مسعود دخپلو نویو کمونیستو حلیفانو سره په ګډه په کابل کې موجود کمونیستي واکمن هم دې ته اماده کړل چې دمزارشریف له تجربې نه په استفاده له مخالفت څخه لاس واخلي د ۱۳۷۱ هـ ش کال د حمل په ۲۶مه د احمدشاه مسعود کمونیست ایتلافیان لکه جنرال مؤمن ، عبدالمجید روزي ، بابه جان او نور له کابل میشتو ایتلافیانو سره په تفاهم کابل ته له خپلو افرادو سره ننوتل مهم او ستراتیژیک ځایونه یې



په وروستیو کې همدې کمونیستي جنرالانو له یوشمیر جهادي قومندانانو سره په تفاهم یو مشترک پلان جوړ کړ ترڅو دشمالي ولایاتو واک په بشپړه توګه په لاس کې واخلي دجنرال مؤمن په وینا ددې پلان

ټینګ کړل او مسعود له چاریکارو څخه جهادي رهبرانو ته وویل چې کابل سقوط ته اماده دی ، یوازې ددوی حکومت جوړولو او زعیم ټاکلو ته انتظار دی .

په دې توګه یو شمیر جهادي رهبران د د ۱۳۷۱ هـ ل کال دثور په څلورمه په پیښور کې سره راټول شول او له اوږدو بحثونو وروسته یې په هغه طرحه توافق وکړ چې عبدرب الرسول سیاف پیشنهاد کړې وه ، ددې طرحې له مخې لومړی به دوه میاشتنی حکومت ټاکل کیږي چې صبغت الله مجددي به یې مشر وي ، نوموړی به له پنځوس کسیز پلاوي سره کابل ته ځي چې واک ترلاسه کړي ، له هغه وروسته به برهان الدین رباني د ۴ میاشتو لپاره مشر وي ، له هغه وروسته به یوه اسلامي شورا جوړیږي چې راتلونکی زعیم وټاکي .



له دې طرحې سره اکثرو جهادي مشرانو توافق درلود خو دحزب اسلامي ګوند ورسره مخالف وو ، حکمتیار تاکید کاوو چې په کابل کې واک اوس هم د دوستم ، نبي عظیمي ، بابه جان او مجید روزي غوندې کمونیستانو په لاس کې دی ، چې ځانونه یې دمجاهدینو په پوستین دننه کړي دي ، لومړی باید دوی تصفیه او له صفه وایستل شي او وروسته دې مجاهدین په فاتحانه انداز کابل ته ننوزي .

خو څرنګه چې اکثره ګوندونو دپیښور له طرحې سره توافق درلود حضرت صبغت الله مجددي دثور په اوومه سهار وختي له پیښور څخه روان شو ، شپه یې د کابل په ختیځ کې وکړه او سباغرمه مهال چې د ثور اتمه وه کابل ته ننوت.

په دې توګه دثور اتمه دمجاهدینو دبریا دورځې په نامه په تاریخ کې ثبت شوه ، که څه هم دمجاهدینو هماغه ناقص پروګرام او نه هماهنګي وروسته ډیرې ستونزې وزیږولې ، مګر دثور اتمه یوازې کابل ته دحضرت مجددي دننوتلو دورځې په عنوان نه بلکې زموږ د څورالس کلن پر تمین جهاد دبریا ، دکمونیزم دشکست او دافغانستان دازادۍ دسمبول په حیث له ستر ویاړ څخه ډکه یوه تاریخي ورځ ده چې باید زموږ مؤمن ولس وربانديې وویاړي .

ځیني خلک د پیښور کمزورې معاهدې او دثور له اتمې نه وروسته خونړیو جریاناتو ته په اشاره سره داورځ تر انتقاد لاندې نیسي ، دوی ته باید ووایو چې موږ دغه ورځ دځپل هغه جهاد دیوه علامت په حیث لمانځو چې د شلمې پیړۍ اعجوبه بلل کیږي ، هغه سرلوړی جهاد چې په برکت یې د کمونیزم نړیوال ښامار ټوټه ټوټه شو او درسته نړۍ د مارکس ، انګلز او لنین له جنجالي منحوسي مفکورې څخه خلاصه شوه ، موږ داورځ دځپلو شهیدانو دیادلمانځلو ورځ بولو چې په تش لاس له پولادي ټانګونو او ناپالم بمونو سره وجنګیدل ، په دې ورځ باید د ځپلو څوارلس کلنو سختیو ، هجرتونو ، شهادتونو او حماسو یادونو راتازه کړو ، باید دځپلو شهیدانو ارواحو ته دعاء وکړو ، دهغوی په قبرونو راوګرځو ، دالله تعالی له دربار څخه د ځپل پاک جهاد ، هجرت ، شهادتونو او نورو تکالیفو د قبول خواست وکړو ، په عین حال کې باید دثور داوومې او اتمې ورځې د پس منظر په تحلیل سره دتاریخ له دې دوو عبرتناکو ورځو څخه بشپړ عبرت واخلو ، ددې ورځو په اسبابو او مقدماتو کې فکر وکړو ، او راتلونکې لپاره د لاربنود په حیث ترې استفاده وکړو .

# امریکا، نسل آیندهٔ ما را به سوی تباهی میکشاند

(ژ.ن)

از میان جمعیت ۳۰ میلیوني افغانستان، تعداد معتادان بزرگسال از یک و نیم میلیون نفر فراتر رفته است که در این میان تقریبا ۳۰۰ هزار کودک نیز آلوده به مواد مخدر هستند

متاسفانه حاصل حضور ۱۳ ساله غربی ها در کشور ما همه چیز بوده است جز پیشرفت و بازسازی و این یک واقعیت است که پس از گذشت ۱۳ سال از جنگ، هنوز پیشرفت قابل توجهي در برقراري امنیت حاصل نشده و هر روز شاهد بدتر شدن اوضاع در کشور و کشته شدن غیر نظامیان بسیاري هستیم.

اگر از ارایه تلفات مالی و جانی در این مختصر صرف نظر کنیم باید بگوییم: متاسفانه غربی ها آنچنان اذهان عمومی را در گیر مسایل حاشیه یی کرده اند، که بسیاری از دولتمردان و مردم افغانستان از اتفاقات وحشتناکی که پیرامون آنها رخ می دهد، غافلند.

مسایلی مانند فروش مشروبات الکلی و گوشت خوک در بازارهای داخلی، راه اندازی مخفیانه قمارخانه ها، ترویج بی بندوباری، به فساد کشاندن جوانان، گسترش بی حجابی و تزلزل نظام خانواده و اکنون افزایش تعداد کودکان معتاد که حاصل سیاست شوم غرب در به دست آوردن سود به هر طریق ممکن است.

با هزار تاسف باید گفت: هم اکنون در مراکز بازپروری معتادین، کودکان ۳ تا ۱۲ ساله افغان تحت معالجه براي ترک اعتیاد هستند که این موضوع نشانگر رشد شمار معتادین به مواد مخدر در کشور است.

بیشتر کودکان کشور ما، اعتیاد به موادر مخدر را از والدین خود هنگام استنشاق دود تریاک پدران خود در خانه به ارث مي برند. از سوي دیگر مادران نیز براي آرام نگاه داشتن کودکان خود هنگام قالین بافي یا برداشت محصول تریاک، به آنها مواد مخدر مي دهند.

بنا بر گزارشات منتشر شده هم اکنون از میان جمعیت ۳۰ میلیوني افغانستان، تعداد معتادان بزرگسال از یک و نیم میلیون نفر فراتر رفته است که در این میان تقریبا ۳۰۰ هزار کودک نیز آلوده به مواد مخدر هستند. میانگین سنی این معتادین نیز بین ۱۵ تا ۳۵ سال است که نشان می دهد جوانان کشور که نسل آینده ما می باشند، گرفتار این عمل شده اند.

متاسفانه در این رابطه هنوز هیچ اقدام مفیدی از سوی دولتی ها انجام نشده است. چندی قبل بسیاری از آگاهان مسایل داخلی کشور گنجانیدن مضرات مواد مخدر در کتاب‌هاي درسي و همچنین اطلاع رسانی شفاف و دقیق از سوی رسانه های صوتی و تصویری داخلی کشور شدند. که تاکنون هم عملی نشده است.

زارعانی که به کشت این ماده مرگبار می پردازند نیز ظاهرا تحت نام تامین مایحتاج زندگی شان و نبود اشتغال و منبع مناسب درآمد، بر ادامه کشت تریاک اصرار می نماید، اما بی خبر از آنکه اثرات مرگ آور ناشی از آن بیش از پیش به خود ما آسیب رسانده و موجب گرفتاری جوانان در دام مهلک و کشنده اعتیاد می گردد.

زمانی این مساله ضرب المثل شده بود که افغانستان بزرگترین صادر کننده مواد مخدر جهان است اما معتاد ندارد، ولی امروز وجود بیش از یک میلیون معتاد در کشور بسیار نگران کننده است. ارائه این آمار تکان دهنده باید زنگ بیداری برای مسوولین کشور علی الخصوص وزارت مبارزه با مواد مخدر باشد چرا که افزایش دو برابری معتادین در سال جاری آثار بسیار مخربي بر روي پیشرفت هاي اجتماعي و فرد معتاد در کشور دارد.

با این تفاصیل دیگر نیازی به توضیح بیشتر نیست و به آسانی می توان فهمید که غرب در رسیدن به خواسته های خود به زندگی و آینده مردم افغانستان هیچ ارزشی قایل نیست. کاخ سفید نشینان به اهداف خود فکر می کنند و اصلا برای آنها مهم نیست که چه تعداد زن و کودک، پیر و جوان، در این راه قربانی سیاست های شوم آنها می گردند.

*در این میان دولتمردان کرزی هم هیچ فعالیت مناسبی از خود بروز ندادند تا مانع این نابودی نسل آینده کشور شوند. آنها نیز فقط به فکر خویش و خویشان خود بودند و بس. تا ببینیم دولتمردان دولت آینده چه می کنند.*

# غوره غورچاڼا

مصطفی صفا

۱: مچ په ګلخانه کې هم په مردارو پسې ګرځي. «استاد ګل پاچاه الفت»

۲: د خدای له بنده ګۍ سره بله بنده ګي نه شي کېدلی. «استاد ګل پاچاه الفت»

۳: ترڅو چې علم او معارف په خپله ژبه نه شي، د انسان په ذهن کې پوره ځای نه نیسي. «استاد ګل پاچاه الفت»

۴: ژوند د تحول او تکامل نوم دی، د صحرا کانې چې په ډېرېو ډېرېو په یوه حال پراته دي، ژوندي ورته نه شو ویلی. «استاد ګل پاچاه الفت»

۵: ریا په عبادت کې، تجارت په سخاوت کې او شیطانت په هوښیارۍ پټ شو. «استاد ګل پاچاه الفت»

۶: د ویدو قومونو کارونه، لکه د ویده خوب، چې په سیند کې به لامبي، خو لاس به یې لوند نه وي او هماغه شان به تېري وي. «استاد ګل پاچاه الفت»

۷: غم او خوشالي یو په بل پورې تړلي دي او یو له بله نه بېلېږي، ځینې ګومان کوي، چې خوشالي له بې غمه خلکو سره زیاته ده او هغه څوک ډېر خوشاله دي، چې هېڅ غم نه لري، مګر حقیقت دغسې نه دی او ښادي هر چېرې د غم په اندازه ده. «استاد ګل پاچاه الفت»

۸: شدید محبت او شدید بغض د انسان اختیار سلبوي او هغه ورباندې کوي، چې په عادي او طبعي حال کې یې یو عاقل انسان نه کوي. «استاد ګل پاچاه الفت»

۹: اوس خلک تر لیډر، لېډر ډېر خوښوي. «استاد ګل پاچاه الفت»

۱۰: څوک چې د خپل ژوند او سر و مال نه سپوا، یو داسې شی نه پېژني، چې دا ټول ورځنې ځار کړي، له هغه نه د لویو کارو هیله هېڅ وخت نه کېږي. «استاد ګل پاچاه الفت»

# هندي ټاکنې!

# راتلونکی صدراعظم او د مسلمانانو برخه لیک!




ابو ظهیر

دهنـدي پارلمـان ۵۴۳څوکیـو لپـاره درایـو اچـول دوام لري، تـردې مهاله دټاکنو له نهو مرحلونه ډېری بشپړې شوې، وروستۍ نهمه مرحله به دمې میاشتې په دولسمه نېټه بشپړه شي او په شپاړسمه نېټه به دانتخاباتو پایلې اعلان شي، څنګه چې هند دنفوسو له پلوه دنړۍ یو له لویو هېوادو دی په روانو ټاکنو کې یې نژدې ۸۱۴میلیونه خلک درایو کارولو لپاره اهل بلل شوي. دیادونې وړده چې رایو اچولو لړۍ وړاندې دروان (۲۰۱۴)زکال د اپریل میاشتې اوومې نېټې راهیسې روانه ده.

هندوستان اوپاکستان دواړو ته دحکومتدارۍ سیستم له برتانوي امپراطورۍ نـه پـه میـراث پـاتې دی، دبرتـانیې پـه څېـر ددواړو هېوادونـو دحکومتي جوړښت بڼه پارلماني ده، مشر یې صدر اعظم وي، څوک چې دپارلمان غړو داکثریت لخوا غوره کېږي او حکومتي کابینه هم د پارلمان له غړونه جوړېږي، په دې علاوه پارلمان د تقنین څواک هم دی اوقوانین جوړوي، نو پارلمان په یوه وخت کې "مقننه او اجرایه" دواړه دی، هر چې ولسمشر دی هغه دهېواد دریاست مشر وي، دهغه څوکۍ ډېره تشریفاتي ده، دبرتانوي ملکې پشان یواځې سبمولیک حیثیت لري، ملکه دبرتانیې دریاست مشرده، خو په حکومتي چارو کارنلري، یواځې په یوشمېر مهمو حالاتو او لویو قضایاوو کې دوخت حکومت تـه مشورې ورکوي، دهېواد لمانځنو غونډو کې بیرغ پورتـه کوي، لـه نوي صـدراعظمه سوګند اخلي، وزیرانو تـه لوړې ورکوي، مډالونه ویشي، باقي دحکومت د کلیدي چارو واګې د صدراعظم په لاس کې وي. هغه ټول حکومت رهبرې کوي.

هنـدکې دامهال نـژدې شپاړس سوه او شپاړس سیاسي ګوندونـه رسمي او راجستر ګوندونه دي، یکې مهم شپږ ګوندونه دي، په شپږو کې بیا دوه ګوندونه داسي دي چې هغه دواړه په ټول هند کې زیات ملاتړ او نفوذلري، یو: دهندوانو ملت پال ګوند "بهارتـه جنتا پارټې" اوبل اوس واکمن ګوند "کانګریس" دی دچاپه لاس کې چې له تیرو لسو کلو راهیسي دواک کیلې ده ،" بهارتـه جنتـا ګوند چې زیات پـه" بې جې پې" مخفف شهرت لري، د هندوانو لوی متعصب ګوند دی او دمسلمانانو په باب ډېر بد تاریخ لري هر چې کانګریس دی هغه دبې جې پې په نسبت د مسلمانانو په اړه څه نرمه رویه اودریځ لري، دیته په کتو دهندوستاني مسلمانانو اکثریت هم کانګریس ته رایې ورکوي.

په روانو انتخاباتو کې د بې جې پې لخوا دصدار اعظمی منصب ته کاندید دغربي ایالت "ګجرات" پخواني اعلی وزیر "نریندر مودي" دی اود کـانګریس لـه لـوري ددغـه ګونـد د مشرې(سونیا ګانـدي) زوی "راهـول ګاندي" سیالی ته ولاړ دی.

دنړیوالې میډیا دوړاندینو او سروېګانو دارقامو په استناد: د کانګریس په پرتله د" بې جې بې" تله درنه ده او بریښي چې "بې جې پې" به ۵۳سلنه او کانګریس به ۱۹ سلنه رایې ترلاسه کړي اونورې به د وړو ګوندونو ترمنځ وویشلې شي. دامریکایې سیاسي کتونکو له قوله: دهند۶۳ فیصده وګړي غواړي " بې جې پې" په واک کې راشې او ۱۹ یې دکانګریس نه ملاتړ کوي!! نو پوښتنه دا ده: چې آخر د"نریندر مودي" دبریالیتوب سلنه ولې لوړه ده؟

ځواب دادی: په تیرو لسو کلونو کې د کانګریس دخرابې حکومتدارۍ له وجې، د هند خراب اقتصادي حالت او بد حالي ددې لامل شوې چې دخلکو پام د کانګریس په ځای بې جې پې ته ډېر شوی. کتونکي وايي: دنریندر مودي د مقبولیت بله وجه داده چې ډېری هندي پانګوال هم له هغه نه ملاتړ کوي او ورته انتخابي کمپاین چلوي، دانظر هم شته چې دهند ځوان نسل غواړي هېواد کې موروثي سیاست پای ومومي او ربښتینی بدلون راشي!!

دډېرو په نظر د کانګریس یوه لویه بد نصیبي دا هم ده چې له "اندرا ګاندي" وروسته د"لال نهرو" کورنۍ کې بل سیاستوال پیدانشو!! د نریندر مودي دبریالیتوب قوي چانس دادی چې په مقابل کې یې نهرو کورنۍ "راهول ګاندي" ودرولی چې د ډېر لږ دبري چانس لري

د"راهول ګاندي" ګوند چې له تیرو لسو کالو راهیسي واکمن دی، د اقتصادي ودې په برخه کې یې کردار صفر او منفي دی، په دې وجه دډېرو خلکو میلان دبي جې پي په لوردی.

هر چې دنریندر مودي کردار دی، هغه د ګجرات دایالتي اعلی وزیر په حیث ګجرات ایالت دهندتر ټولو پرمختللی ایالت ګرځولی او په راتلونکي کې دګجرات پشان دټول هند دترقۍ او پرمختګ خوبونه ویني او وايي: ګجرات کې وروستۍ پرمختیاوې دټول هند په تاریخ کې ساری نه لري!

په دې سربیره نریندر مودي له شک پر ته دهند په تاریخ کې ترټولو متعصب اوملت پال کاندید هم دی، هغه دهندوانو دعروج او برم هیلمن دی، هغه په هند کې متنازع سیاستوال دی، له مسلمانانو سره یې دښمنې او مخاصمت پټ ندی، هغه په ښکاره څو ځله ویلي: "ایا هغو خلکو ته سبق ښودل ضروري ندي چاچې څلور، څلور ودونه کړي!! اوپه دې ډول دخپل نفوس سلنه زیاتوي؟ که څه هم مودي کوښښ کړې چې دانتخاباتو په معر که کې ماضي له پامه وباسي او دهمدې لپاره یې له ځان سره دهندي سینما مشهور اداکار "سلمان خان" ملګری کړی دی، لیکن دهند په غربي ایالت ګجرات کې دمسلمانانو نسلي قتل عام دهغه په لمن داسي تور داغ دی، چې هیڅ نه وینځل کېږي. په نریندر مودي تور دی چې دګجرات ایالت داعلی وزیر په حیث د ۲۰۰۲ زکال په لومړیو کې په احمد آباد کې هغه نه یوازې دهندوانو په لاس دمسلمانانو دقتل عام په مخنیوي کې پاته راغلی بلکې دمسلمانانو په قتل کې دلاس لرونکو هندوانو مشرې یې هم په غاړه وه!! په کوم قتل عام کې چې دوه زره مسلمانان شهیدان، دوه نیم زره ټپیان، او ۲۲۳تنه یرغمال شوي وو، هم دا راز هندوانو دګجرات داتلسمې پیړۍ هدیرې او دمحافظ خان مسجد په ګډون نیږدې ۲۳۰ مسجدونه اورګاډې وسیزل او د ۲۵۰میرمنو په عزت او ابرو یې تیرې وکړل، تاریخ کې په لومړي وار دهندوانو میرمنو هم په فسادونو کې برخه واخیسته، هندو وحشتګرو دمسلمانو میرمنو ګیډې وڅیرلې، دهغوئ جنسي غړي یې پریکړل، په دې وجه نژدې یولک کسان دخپلو کورونو پریښودلو ته اړشول دنریندر مودي په اړه داهم ویل کېږي چې پلاریې داور ګاډې په تم ځای کې خواړه پلورل، موریې په دفترونو کې جارو کښې کوله او دی په لس کلنۍ کې دیو ترهګر هندو تنظیم سره ملګری شو، دهم هغه تنظیم لپاره له خپل ازدواجې ژونده لاس په سر شو، له خپلو، خپلوانو نه جلا اوسي اود مسلمانانو په اړه ډېر ناوړه او جارحانه عزایم لري، په نړیواله تو ګه داانديښنه شته چې دنریندر مودي په صدراعظم کیدو به هند کې یوځل بیا دمسلمانانو نسلي وژنې زور واخلي، په دې سره به هندوستان دمسلمانانو لپاره په یو نامصئون هېواد بدل شي تردې چې ځینې سیکولرستان هم اندیښمن دي چې دنریندر مودي په بریالیتوب به هند کې جمهوریت او دیمکراسې ټکان وخوري او د کانګریس دمشرې سونیا ګاندي په وینا: آن چې هندوستانیت به ټکان وخوري! دداسي اندیښنو په وجه هند کې مسلمانان د خپل راتلونکي په اړه ډاډمن نه ښکاري.

دچارو څېړونکو په ګومان هند کې دګاندي کورنۍ دموروثي سیاست ټغر په ټولیدو دی، هغوئ اندیښنه لري چې دهند او ګاونډیانو ترمنځ ترینګلی دور پیلدونکی دی، په بل سپیناوي دمودي د برې مطلب دادی چې دهندوانو اومسلمانانو ترمنځ به شته واټن نور هم پراخ اوغځول شي، نړیواله میډیا چې دنریندر مودي دممکنه بري وړاندوینې کړې، اندیښنه لري لکه مشهوره امریکایي ورځپاڼه (وال سټریټ ژورنال) کاږي: نریندر مودي سخت سری هندو بنسټ پال او دمسلمانانو قوي دښمن دی، بریتانوۍ ورځپاڼې (کار ډین) کښلي:

دنریندر مودي ممکنه بری به ډېرې بدې پایلې ولري.

اوس پوښتنه داده چې په دې حالت کې مسلمان قیادتونه او تنظیمونه په کوم موقف کې قرار لري؟ او اوس دهندي مسلمانانو درهبرۍ اوقیادت واګې دچا په لاسو کې دي؟ ښکاره ده چې د هند مسلمانان دخپل راتلونکي په اړه ډېره لږ خوشبیني لري، تر ډېره مسلمانان اندیښمن دي، په خاصه تو ګه دهندي مسلمانانو ځوان نسل دهېواد په اقتصادي پرمختګ او ترقۍ کې ځان بیر ته پاتې حسوي، ولې هر نوی حکومت چې جوړېږي هغه دمسلمانانو ستونزو حلولو په اړه ورسره کلکې ژمنې کوي، خو وروسته په یوه وعده هم عمل نکوي، هم دا راز هندوستان کې دمسلمانانو لویه ستونزه په سیاسي ډګر کې

دمسلمانانو ديوه فعال قيادت نشتوالي هم دی، دکوم له امله چې هغوئ دهېواد دکليدي سياسي چارو په ټاکلو کې ډېر کم رول لري، دسيکولرزم پلويان ديوه داسي مسلمان مشر په لټه کې دي، چې هغه سيکولرست او دنورو لړکيو سره يوځای دهېواد مسلمانو وګړو ته دهند په ترقۍ کې ونډه ورکړي.

## ديني ګوندونه:

له شک پرته دهندوستانو په ديني ګوندونو کې داسي ګوندونه شته چې هغوئ له تاريخي پلوه دهندوستان په ازادۍ او دمسلمانانو دسياسي شعور په ويښولو کې ستر کردار ادا کړی دی، په دغو ګوندونو کې ترټولو مخکښ ګوند دهندجمعيت علماءپه نوم ګوند دی، چا چې دانګريزانو دسلطې په خلاف دهند او جنوبي آسيا دمسلمانانو دسياسي او جهادي پوهې کچې په لوړولو کې ارزښتمن خدمتونه سرته رسولي، ديادونې وړده چې جمعيت علماء هغه ګوند دی چې د انګريزې ښکېلاک په وړاندې يې دهند مسلمانانو دديني او سياسي رهبرۍ ترټولو قوي مسوليت په غاړه درلود،خو دهندوستان دتقسيم وروسته مسلمانان چې دکوم ډول حالت سره مخ شول، يا دقيادت کومه خلا راغله، هغه تر اوسه چاډکه نکړای شوه...؟

دهند جمعيت علماء بيشکه لوی تاريخ لري، هغه نه غوښتل چې هندوستان تقسيم شي، ددې لپاره يې ګڼ دلايل لرل، ليکن دعلماوو يوې بلې ډلې بيا دهغه چاملاتړ کاوه، چا چې دهندوستان دتقسيم غوښتنه کوله، کله چې هندوستان وويشل شو، نيم مسلمانان له پاکستان سره شول او دنيم نه زيات په هندوستان کې پاتې شول، جمعيت علماء دهغو مسلمانانو چې په هند کې پاتې وو دهغوئ دملي او اسلامي وجود ساتنې ته مټې راونغښتې، دځينو مصالحو پخاطر يې په انتخابي سياست له ګډونه ځان ځنډې ته کړ، خپل ټول پام يې هندوستان کې دپاتې مسلمانانو دپېژندګلوۍ اواسلامي وجود ساتنې ته وګرځاوه، دهندوستان دويش نه وروسته دجمعيت علماء مشرانو هريو مولانا حسين احمد مدني او مولانا ابو الکلام ازاد هندوستان کې دپاتې مسلمانانو په زخمونو دملهم پټۍ کېښودې، ورته يې دژوندنوی مورال اونوې روحيه ورکړه، دتقسيم وروسته کانګريس مشرانو غوښتل مولانا ابو الکلام ازاد ته دهند دولسمشرۍ څوکۍ ورکړي، خومولانا دهغې په مقابل کې دپوهنې وزرات څوکۍ ته په دې ترجيح ورکړه، څو پخپله دپوهنې دوزير په حيث دهندوستان تعليمي نظام او نصاب تر خپلې څارنې لاندې جوړ او ترتيب کړي دهندوستان په تعليمي بهير کې داسلامي مدارسو او جامعو راتلونکی، دهغو ازادۍ اوخپلواکۍ خوندي کړي، دغه وجه ده چې نن دهندجمعيت علماء ټول هندوستان کې دمدرسو، ښوونځيو اوليسو کوم جال غوړولی دنړۍ په نورو هېوادو کې يې ډېر کم مثال تر ستر ګو کېږي، چېرې چې هغوئ دمسلمانانو اولادونو ته دعصرې ذده کړو ترڅنګ ديني ذده کړې هم ورکوي او کوښښ کوي چې ځوان نسل دبې لارۍ او انحراف په لارو لاړ نشي، ولې په يو داسي هېواد کې چې دنفوس يوازې ۱۵ سلنه يې مسلمانان جوړوي،د مسلمانانو لپاره دخپل ايمان او عقيدې ساتنه اسان کار ندی او بياداچې دانتخابي سياليو دلارې واک ته ورسې ناشونی کار دی، ديته په کتودهندجمعيت علماء ځان له مروجه سياست نه بيرون کړی دی، يوازې تعليمي، سياسي، دعوتي او د اقتصادي ډګرونو پورې يې خپلې هڅې محدود کړي څو ورځې دمخه ددغه ګوند سکرتر جنرال مولانا محمود مدني وويل: دوئ په تيرو ۶۵ کلو کې دمسلمانانو دپيژندګلوۍ اواسلامي وجود دژغورلو مبارزه په ښه بريې سره کړې، دمسلمانانو ديني شناخت يې ژغورلی، يا په بله ژبه دمسلمانانو ايمان يې خوندي کړی او دا کار ترهرڅه خپل لومړی مسوليت بولي!، خو دځينو ځوانانو په وينا: دمسلمانانو دايمان ژغورل جلا خبره ده او دمسلمانانو ستونزې حلول جلا اړتيا ده؛ که جمعيت علماء دمسلمانانو ايمان ژغورلی، خو د مسلمانانو دستونزو حلولو لورته هم تو جه پکار وه؟ چې تر اوسه داکار ندی شوی ! لنډه داچې دتيرو اووه لسيزو راهيسي دهند مسلمانان دستونزو او مسايلو په ګرداب کې تړلې دي، که يولورته يې ديني تشخص لړ ډېر ساتل شوی خو ستونزې يې چاندي حل کړي، هندوملت پال ګوندونه ورسره ددښمنۍ نه ډکه رويه لري، په خاصه توګه بې جې پې خو يې په اړه کرکجن تاريخ لري، کانګريس چې دبې جې پې په نسبت ځان مسلمانانو ته نيږدې بولي او هم دمسلمانانو اکثريت ورته رايې ورکوي هغه هم دمسلمانانو دستونزو حلولو په اړه کومه ځانګړې اجندا نلري، چې دمسلمانانو دحقوقو دفاع لپاره هندواکثريت قانع کړي !په دې توګه کانګريس هم دوه مخې پاليسې لري ،البته دبې جې پې په مقابل کې کانګريس حکومت دهندي مسلمانانولپاره ډاډ ښونکی دی داچې دمې مياشتې دشپاړسمې نيټې وروسته دهندوستان دتقدير واګې دچا لاسو ته پريوزي ؟ دبې جې پې که دکانګريس لاسو ته ؟ که څه هم نړيواله ميډيا دبې جې پې تله درنه بولي خو دکانګريس پلويان هنوز پخپل بري ډاډمن ښکاري حتی دعوه کوي چې دګجرات ايالت چې دبې جې پې قوي مر کزدی هم داخل دبې جې پې له لاس نه په ووتودی، خو دهر ګوند دحتمي بري اوشکست په اړه هر څه ويل او وړاندوينې کول له وخت مخکې دي له دې وجې دمې مياشتې ۱۶مې نيټې پايلو ته د انتظارپرته چاره نشته....

# په بدخشان او پنجشیر

## کې حقپالونکې معرکې او دپښتاګون اوښکې !!

خبیراحمد مجاهد

بدخشان او پنجشیر زموږ د هیواد هغه سیمې او یا ولایتونه دي چې ګوډاګیانو له ډیره مهاله هغه د خپلو ناولو موخو ښکار او سپر ګرځولي او له خپلو بادارانو څخه په دې نوم چې یاد ولایتونه د دوی په اند د امن ټاټوبي دي او د خارجي لښکرو په وړاندې پکې هیڅ ډول ګواښ او مخالفت نه ترسترګو کیږي ، په سیاسي رشوتونو سربیره لسګونه میلونه ډالر ترلاسه او د خپل ناولي تجارت بازاریې پرې تود ساتلی .

ویل کیږي ، د پخواني ټلوالي لوټماران له امریکا او اروپایي پارلمان څخه په دې پلمه چې په شمال کې د خارجي قواوو په ضد مخالفت راپورته نشي او خلک د طالبانو په مقابل منفي ذهنیت ولري ،هر کال شل میلونه ډالر ترلاسه کوي او بیایې څوتنه جګړه ماران په خپلو منځو کې سره ویشي . !

خو د اسلام له سپاهیانو او د اسلامي امارت له سرسپارلو اتلانو سره د الله تعالی د حیرانونکې نصرت او مدد عملي بیلګو ته ګوره چې د غلیم غورځې پرځې او وارړین تبلیغاتي پیلان په څه ډول ویلي کوي او د بدخشان او پنجشیر په غرونو او درو کې د اسلام او هیواد د دښمنانو کاړه او رمیږونه په کوم تکتیک او تدبیر سموي !!

په بدخشان ولایت کې که څه هم د مجاهدینو د تسلط او ډاګیزه ظهور خبره نوي او تازه نده ، ځکه څو میاشتې وړاندې هم د بدخشان په ګڼو ولسوالیو کې داخلي ګوډاګیو عسکرو او د ملي اردو هغو قطعاتو ته چې قومنده یې مخامخ د دفاع وزیر بسم الله خان په غاړه وه د اسې تاریخي درس ورکړ چې کله عام ولس د کم شمیرو مجاهدینو همت ته و کتل او له مقابل طرف سره یې د هغوی امکانات مقایسه کړل نو الله تعالی یې په زړونو کې د اعقیده او جذبه ځای پرځای

او راو پارو له چې که طالبان په حقه نه وي او الهي نصرت ورسره شامل حال نه وي نو څنګه څو درځنه طالبان چې نه کماحقه وسلې او مرمی لري ، نه چورلکې او ټانګونه ورسره شته او نه هم مالي امکانات او بیا هم زرګونو مجهزو او په هر ډول وسلو او امکاناتو مالامال عسکرو ته تاریخي ګوزار او درس ورکوي ، نوښکاري چې دوی په حقه او مبارزه یې مقدسه ده .

د بدخشان له ولس سره همدغه مینه او جهادي غرور وو چې اوس دوی په هره سیمه ، کلي او بانډه کې د مجاهدینو تود هرکلی کوي د خواخوږۍ غیږې ورته پرانیستي او په سرا و مال ورسره ولاړ دي.

د رواني میلادي میاشتې ( اپریل ) په ۲۹ نیټه د بدخشان په وردوج ولسوالی کې مجاهدینو دیولړ بریالیو عملیاتو په ترڅ کې د پولیسو د په ژوندي نیولو سربیره ۱۲۰ عسکر چې

نیمایي اربکیان وو مړه او ګوډ مات کړل. دغه راز یې ۴ ټانکونه، ۱۴ عرادې رینجر موټر، ۱ عراده انټر نشینل موټر، ۳ میله دهشکه، ۴ پایې هوان، ۱ میل زیکویک، ۳۲ میله پیکا ماشیندار، ۱۲ میله راکټ لانچر، ۲۰۰ میله کلاشینکوف او تومانچې او خوراډېر نور مهمات هم لاس ته راوړي.

په همدې توګه ( د اپریل په ۳۰ ) نیټه د پنجشیر په ولایت کې هم چې تالیخټو یووخت هغه د ځان لپاره تربل هرځایه پرامن اوبې خطره سیمه بلله او په ۲۰۰۱ کال کې له فضا څخه د اشغالګرو امریکایانو د رومبي یرغلګر ټولي د کوزیدا د مهمې ځالي په ډول به یې پرې افتخار کاوه ، خو د مجاهدینو دیوه تکتیکي اتلوال برید په ترځ کې چې د پنجشیر دري په خوله کې د استخباراتو او ملي اردو د تجمع په مهم مرکز ترسره شو ۴۰ تنو ګوډاګیانو ته یې د سرپه کاسه کې د اسې عبرتناک درس ورکړ چې بیا به د پنجشیر بګلیل چاروا کي هیڅکله هم په خوله دا خبره رانه وړي چې نوموړي سیمه د امریکایانو او دهغو د مزدورانو لپاره مصؤنه او بې خطره ځمکه ده..

د پیښې په رومبو ساعتونو کې د کابل رسمي سرچینو ډیره هڅه وکړه چې د پنجشیر په برید او تلفاتو پرده واچوي ، بې زیانه یې وښیې او یا په مرګ ژوبلې کې ملکي خلک زیات وبریښوي ، خو د الله تعالی قدرت ته ګوره چې د عیني شاهدانو په مرسته د نوموړي پیښې جزیات ټول د اسې غالب او صفاراووتل چې نور یې د رواغجني میډیا او حلقه بګوش غلامانو ته داموقع په لاس ورنکړه چې حقایق مختل او لمر په دوګوتو پټ کړي.

لسو پوستو په نیول کیدو او د ۱۲۰ عسکرو

په بدخشان او پنجشیر ولایتونو کې د جهادي ګوزارونو اهمیت په دې ټکي دی چې له ډیرې مودې راهیسې ځوتنو جهاد او ایمان فروشانو د خپلو شخصي او شیطاني ګټو په خاطر دیوه لوی مسلمان ولس په دیني او ایماني غرور د سوداباز ګرم بازار جوړ کړی وو او له تیرو ۱۳ کلونو راهیسې په مسلسل ډول نړئ ته د اکاذب باور اوناسم ذهنیت ورانتقالاوه چې ګواکې د پنجشیر او بدخشان او یا په مجموع کې د شمال مومني پرګني د اشغالګرو په خلاف کوم حساسیت او مخالفت نلري.

خو ورستیو بریدونو په ډاګه کړه چې شمال ولس او بیا په خاص ډول د بدخشان او پنجشیر پرګني ، که لږ هم خپل اختیار او قضاوت ته پریښوول شي ، نو خامخا به د میړاني توره له تیکي راباسي او پرهغو ټولو ذهنتونو به د بطلان کرښه راکاږي چې ټلوالي د خپلو شخصي ګټو او سیاسي رشوتو نو د برقرارساتلو لپاره جوړ کړي وو

په بدخشان او پنجشیر کې ورستي جهادي عملیات په داسې حال کې ترسره کیږي چې د پنتاګون له مانۍ څخه هم د افغانستان د ناکامي جګړې په اړه د حسرت او نا امیدی اوښکي راووځیدې او په عملي شکست سربیره یې په یوه راپور کې د افغانستان په جګړه د ۷۱۰ ملیارده (اووه سوه زره ملیونه) ډالرو د لګښت په ترخ کې اعتراف کړی چې په افغانستان کې د امریکا دومره لوی لګښت پرځای نه داچې پرځای لګیدلی ، بلکې تر ډیره برید ه هدر تللی.

د دې راپور په یوه برخه کې چې د بلومبرګ خبري شبکې خپره کړې ده، راغلي دي، چې د امریکا حکومت د ټوپکسالارانو په مرسته او خصوصي قراردادیانو سره د معاملو او دوی ته د ملیاردونو ډالرو ورکولو له لارې د فساد لمن پراخه کړې او د دې پرځای چې د ملیاردونو ډالرو ګټه عام افغان ولس ته ورسیږي ،هغه د ځوتنو غلو جیبونو او د امریکایي مافیا کځوړو ته رسیدلي ، چې په خبره یې د اد امریکایي ولس اعتماد ته لوی ګوزار او له شتمنیو سره یې لوی خیانت بلل کیږي .



# د شهید مولوي نورقاسم حیدري یاد



رسول الله (ص) وائي چې الله (ج) شهـــیدانو ته پنځه داسې عزتونه ورکـړي چې هغه الله (ج) نه پیغمبر اونه بل چاته ورکړي:

الف: دټولو پیغمبرانو روحونه ملک الموت قبض کوي تر دې چې زما روح به هم ملک الموت اخلي؛ خو دشهیدانو روحونه به الله (جل جلاله) په خـپل ځانګړي قدرت چې څنګه وغواړي اخلي پر یښتو ته ئې نه حواله کوي.

ب: ټولو پیغمبرانو ته غسل ورکـړل شوی اوماته به هم غسل راکول کیږي خو شهیدانو ته غسل نه ورکول کیږي.

ج: ټولو پیغمبرانو ته کفن ور اغوستل شوي اوماته به هم را اغوستل کیږي؛ خو شهید ته کفن نه ور اغوستل کیږي بلکې دخپلو جامو سره به خښیږي.

د: څومره پیغمبران چې وفات شوي هغوی دمړه په نوم یادیږي مګر شهیدانو ته مړه نه ویل کیـږي.

ه: ټول پیغمبران به دقیامت په ورځ شفاعت کوي او زه به هم شفاعت کوم خو شهیدان هر وخت اوهره ورځ شفاعت کولای شي. (قرطبي جلد ۴ ص ۲۷۶) مونږ د خپلو مشرانو په شهادتونو ویاړو ځکه اسلامي مبارزه (جهاد) هغه مهال خپل هدف او منزل ته رسېدلی شي چې د اسلامي مبارزینو د مشرانو او کشرانو په شهادت خړوبه شي، د دې مبارزې د لیکې څخه یو هم د کنړ ولایت لپاره د اسلامي امارت نظامي مسئول او زړور مجاهد، لوړ دلي ستوری مولوي صاحب نور قاسم حیدري وو.

مولوي نور قاسم حیدري د حاجي محسن زوی په ۱۳۵۳ المریز کال کې د خوست د صبريو ولسوالي د مچې نومي کلي کې دې نیمګړې دنیا ته سترګې غړولي او د معمول په څیر مولوي نور قاسم هم خپلې زدکړې خپل کلي جومات کې د ملا امام څخه پیل کړي وي.

د شوروي د ښکېلاک پر مهال یاد مولوي صاحب د هجرت په دیار کې په مختلفو دیني مدرسو کې خپلو دیني زدکړو ته دوام ورکړ، چې وروسته بیاد نوموتي ستر جهادي قومندان او د اسلامي امارت د رهبري شورا غړي مولوي جلال الدین حقاني په منبع العلوم نومې جهادي او علمي مرکز کې یې د خپل علمي اقتصاد د لا پیاوړتیا په هیله داخله واخیسته، د دې تر څنګ حیدري صیب په دار العلوم عربیه ټل، هنګو او نورو دیني مدرسو کې هم خپل درسونه لوستلي وو، چې بالاخره په ۱۳۷۶ المریز کال کې یې د جامعه اسلامیه زرګري هنګو څخه د نبوي احادیثو د فراغت سند تر لاسه کړ.

د یادولو وړ ده چې شهیدمولوي صیب نورقاسم حیدري د خپلې زدکړې پر مهال په ۱۳۷۱ المریز کال کې خپل کلي کې د شمس العلوم په نوم د یوې دیني مدرسې د بنسټ ډبره کیښوده چې تر دې مهاله په لسګونه ماشومان او ځوانان د دیني علومو په زدکړو پکې بوخت دي.

مولوي صیب د فراغت څخه وروسته د شمس العلوم په مدرسه کې د مدرسې د اهتمامتر څنګه په تدریس هم پیل وکړ.

د امریکا په مشرۍ د صلیبي یرغلګرو د یرغل په مهال مولوي صیب مقدس جهاد ته مخه کړه او دسر ګروپ (ډلګۍ مشر) په توګه یې صلیبي یرغلګرو ته د صبريو ولسوالۍ سره تبۍ کړه.

کله چې اسلامي امارت په هیواد کې د جهادي فعالیتونو د لا پیاوړتیا لپاره اداري تشکیلات پراخ او رامنځ ته کړل مولوي صیب نور قاسم حیدري د خوست ولایت د والي په توګه تعین شو چې وروسته یې بیا تر اوسه پورې د کنړ ولایت د عمومي مسئولیت دنده په پوره مېړانه او صداقت په مخ بووله، د ۱۳۹۳ المریز کال د وري د میاشتې په ۱۸ مه د دوشنبې په ورځ د کنړ ولایت د شیګل ولسوالۍ په مربوطاتو کې د صلیبي یرغلګرو په هوایي برید کې د خپلو څو تنو همسنګرو ملګرو سره د شهادت لوړ مقام ته ورسید او خپل درې زامن او درې لوڼې یې تر شاه یتیماني پرېښودل. (سهار افغان)

# ناکامی نظام سرمایه داری و کمونیستی

منقاد

مبارزین سنگران داغ اسلام!

همه ثناء وصفت آن ذات بزرگ وبرتر را سزاء است که مالک هردوجهان است ودرود وسلام برنبی او حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم وبر آل واصحاب او تاروز رستاخیز، بر آن کسانی که دعوت آنحضرت صلی الله علیه وسلم را قبول کردند وبرسیرت آنحضرت عمل می نمایند بدون شک مبارزات شماسربازان اسلام مشتمل براصول ازلی وابدی است ودرجهان یگانه دین تنهاهمین اسلام است که تاروز رستاخیزانسانهارا بسوی نیکی ویک نظام کامل رهنمائی می نماید وجامعه منحرف شده را بسوی اصلاح می کشاند انسان را تلقین می نماید تا ازفسق وفساد دورباشد، وهمه مسلمانهارا بایکدیگربه اتحاد دعوت میدهد.

دینی که انسان را احساسی می بخشد تادرهمه ابعاد دینی ودنیوی از اساسات اسلام رهنمائی بدست آورد وهمین ها مبارزه شمانیزاست کرم خالق خدایتعالی برماباشدکه دلهای مارا باهم یکی گردانیده وهمین محبت بین همدیگرتقاضای ایمان ودفاع ازمقدسات آنست، ازفیض ایمان است که همه انسانها بشکل یک جسدواحد درآمده می توانند، گرچه همه تنهابنظرمی آیند ولی ایمان همه شان یکی است، احساس شان یکی است وتفکرات شان نیزیکی بوده وبرای حصول یک مقصدمشترک مبارزه می نمایند چنانکه اسلاف ما بوده اند. سربازان اسلام! شمابعدازینکه مسلمانان بگروه مختلف بین هم تقسیم گردیدند وازدین بیزار شدند برای دعوت به اسلام ودفاع ازمقدسات آن برخاسته ایدکه آن مسلمانان را یکباردیگربرای یک مبارزه، یک مقصد ویک عقیده گرد آورید، تاناآرامیهای مسلمانان را به نور ایمان دورنمائید.

اکثرازمسلمانهای ضعیف العقیدهٔ ما ازترقی وپیشرفت غرب در امور مختلفه اظهارتعجب می نمایندکه آنها چیزهای تازه تر را کشف می نمایند، حقیقت اینست که همه این امور ازمسلمانان بوده وتعلیمات اسلامی انسان را به این آماده می نماید، مگراینکه مسلمانان بدان اهمیت ندادند، گروه های غیرمسلمان برخاستند وظیفه مسلمان را بدست گرفته کنترول نمودند، که امروز ازنگاه مادی درجهان درمنتهادرجه ترقی قراردارند ولی باوجود این همه ترقی وتعالی آرامش روحی نصیب ملتهای شان نیست، چرا؟

زیراکه آنان ازنعمت ایمان محروم اند، دنیای غرب همه سهولتهای دنیوی را حاصل نموده مگر هرگزسکون قلبی وروحی را پیداکرده نتوانستند، بلکه باوجود ترقی وپیشرفت مادی برپریشانیها وتشویش هایشان افزوده گردیده میرود.

امروز نظام سرمایه داری باهمان ادعای پیشرفت وترقی خود ونظام کمونیستی باهمان ادعای بهشت سرخ خود باروبستر شان را می بندند

همینگونه نظام سرمایه داری غرب باوجود آن همه ادعاهای پیشرفت وترقی مواجه ناکامی می باشند، ازجانب

دیگر نظریه دیگری برخاست که انسانهارا از هرطرف اسیرودربندنمود، حق مالکیت را ازایشان غصب کرد، برتفکرونقل وحرکت وتحریروتقریرشان قیودات وضع نموده گویامطمئن گردیدکه برای ابد مسلمانهارا خاموش نمودیم، آری یک طبقه مخصوصی که حامل این نظریه بوده اند شایدسهولت های برایشان مهیا بوده باشد، آنهادیوارهای بزرگی تأسیس نمودندکه شمایک حرف هم علیه آنهاوخلاف آنهاگفته نتوانید.

مگرامروز هردو نظام سرمایه داری وسوسیالیستی به وضع قبیحی سرنگون گردیده اند وعلمبرداران آن برای پنهان نمودن خود درتلاش پناگاه می باشند.

امروز نظام سرمایه داری باهمه ادعای پیشرفت وترقی خود ونظام کمونیستی باهمان ادعای بهشت سرخ خود باروبسترشان را می بندند، درهرخطه دنیا آیند ونظام را به طرف بدی مسترد می نمایند.

درچنین حالتی، انسانیت، شدیداً منتظرچنین نظامی است که درهمین موقع آنان را رهنمائی نموده بتواند وآن نظام تنهانظام امارت اسلامی بوده می تواند وبس، لهذا به همسنگران اسلام این وجیبه عائد می گرددکه قدم به پیش بگذارند، وحقانیت اسلام را بروی جهانیان توسط دفاع شان ازنوامیس اسلام ثابت نمایند، همین وقت آنست که اندکی دیگرهمت نموده وپیشترگام برداشته ازنورموجود اسلام ظلمت موجوده جهان را محو نمائید.

همسنگران اسلام! شماکه علمبردارچنین مبارزه ای هستیدکه این مبارزه کدام دعوت جدید نیست، این مبارزه دارای گذشته عالی است که مملو ازقربانیهای مسلسل در راه خداوند است.

امروز همین تفکرمبارزانه شمااست که بایک قدرت ظالم وقاهروجابر مردانه وار مقابله نموده وآنرا بانهایت ذلت ورسوائی به شکست وفرارمجبورساخته اید، انشاء الله شب های تاریک مظالم بالای امارت اسلامی عنقریب به پایان رسیدنی است، وبه زودی لوای همین امارت اسلامی درجهان بلندخواهد گردید، اکنون مردم عوام نیزحل تمام مشکلات خودرا درنظام می بینند.

همسنگران اسلام! ماباید اندکی دیگرمبارزات خودرا گسترش داده ازین مراحل بزودی گذشته به پیش برویم، تاجایکه پیش آمدگروه های مختلف براقتدار درمقابله باامارت اسلامی است تغیری در آن نیست، حاکم وقمندان وارباب هرمنطقه همینگونه ازامارت اسلامی خوفزده وبیمناک است، درجائی توسط ظلم وستم درپی سرکوب نمودن این تحریک هستند، درجائی هم مذاکرات وگفت وشنید می خواهند، مگراز امواج احساسات ووابستگی جوانان اسلام به این تحریک بیمناک می باشند، ولی مانباید درین موارد بپیچیم، مامبارزه خودرا باحکمت آن ادامه میدهیم، مابرای حصول مقصد ورسیدن به منزل باید ازهرگونه موانع بگذریم ولو بهرطریق که باشد.

همسنگران اسلام! سعی کنید یقین کامل بذات کریم خداوند پیدانمائید، همه اعمال خودرا فقط برای رضای ذات الله تعالی انجام دهید واین بیرقی راکه شمابرای بلندنگهداشتن آن برخاسته اید قلباً به آن اخلاص وعقیده پیداکنید، کاردعوت به نیکی ونهی ازبدیهارا سرعت ببخشید، قرآنکریم وکتب سیرت نبی صلی الله را به دقت مطالعه کنید، اهتمام اداء نمازهای خود را باجماعت نمائید، درحالت تنگدستی وراحت نظم خودرا ازدست ندهید، همه استعدادهای خودرا وقف سربلندی دین خدا واستحکام نظام شریعت او دردنیا انجام دهید، انشاء الله که مددالهی شامل حال ما خواهدبود.

# اهل سنت والجماعت يا ناجيه فرقه

مفتي شاهد حقاني

## اهل سنت والجماعت څوک او چاته ويل کيږي ؟!

د علم عقايد په نوموتي کتاب (حاشية الخيالى على شرح العقايد النسفية )کې داسې صريح عبارت ليکل شوى ، چې داهل سنت و الجماعت پيژندنه ترې په ډاګه څرګنديږي ،لکه چې وايي ((قال فى شرح العقايد النسفية فبهت الجبائى و ترک الاشعرى مذهبه فاشتغل هو و من تبعه بابطال رأى المعتزلة واثبات ما ورد به السنة و مضى عليه الجماعة )حاشية الخيالى على شرح العقايد ص ۱۹ /ژباړه :جبايي (معتزلي )بې ځوابه پاتې شو ،او امام اشعري رح دده مذهب پريښود ، دمعتزلو د رأيې دابطال او دهغې عقيدې داثبات په چاره مصروف شو ، په کومه چې سنت وارد شوى او دصحابه وو دټولنې يا جماعت ټګلاره وه.

دشرح عقايد النسفي محشي پدې متن کې چې (فسموا اهل السنة والجماعة )باندې کاږې چې ( قوله اهل السنة والجماعة الخ....وهم الاشاعرة وهذا هو المشهور في ديار خراسان والعراق والشام واماکن الاقطار و فى ديار ما وراء النهر اهل السنة والجماعة هم الماتريدية وهو تلميذ ابي نصر العباس تلميذ ابى بکرة الجرجانى تلميذ ابى محمد الحسن الشيبانى من اصحاب الامام ابي حنيفة رحمه الله ،ماتريدية قرية من قرى سمرقند ۱۲رومي ،چې ددې فوق الذکر عبارت لنډه خلاصه داسې ده ،چې چا دمعتزله وو مخالفت کاوه او په سر کې (امام ابوالحسن اشعري رح )و ،نو دوئ ته اهل سنت والجماعت وويل شول ،خو اهل سنت والجماعت د خراسان په سيمو ،عراق ،شام او نورو مناطقو کې اشاعره وو ته وايې او همداسې شهرت لري، خو چې کله په ماوراء النهر هيوادونو کې داهل سنت والجماعت يادونه وشي نو اطلاق يې په (ما تريديه وو ) باندې کيږي ،چې داامام ابوالحسن ماتريدي په څو واسطو سره دامام ابوحنيفه په شاګردانو کې راځي ،او ما تريدية دسمرقند يوه قريه ده ،چې په همدې اساس يې دې کلې ته نسبت کيږي ،يعني په مجموع کې ماتريديان احناف ،او اشاعره غالبا شوافع او نور دي ،چې نن سبا خراسان کې ماتريديان اکثريت او احناف دي، خو دهغه وخت سره دخيالي ملا صيب دتحقيق له مخې اهل خراسان هم اشاعره وو ، مګر نن بيا خبره هسې نده پاتې.والله اعلم.

ددې نه دا هم جوتيږي چې د سمرقند ،بخارى ،ترمذ ،بلخ ،او مرغينان غوندې دنړۍ علمي مراکزلا هماغه مهال دامام ماتريدي رح پيروان او بيا په مجموعي ډول دحضرت امام ابوحنيفه رح دمذهب علمبرداران وو.

دا هم دويلو ده ،چې په ټوليز ډول( اشاعره او ماتريديه ) دواړه اهل سنت والجماعت دي ،په دومره تفاوت سره، چې زيات احناف په عقايدو کې دامام ابومنصور ما تريدي رح دمسلک پيروان اوزيات شوافع او مالکيان دامام ابوالحسن اشعري رح دمسلک پيروان دي ،خو په(مقدمة المهند على المفند ) کې بيا علامه خالد محمود مد ظله العالي دعقايدو درې مسلکه را نقل کړي دي ،دغه مقدمه

چې د (المهند على المفند يعني عقايد علماء اهل سنت والجماعت ديوبند )کتاب باندې (مولينا خليل احمد سهارنپوري رح) رانقل کړي، داسې يې پکښې ليکلي دي چې: الغرض اصول عقايد مين ايک اهل سنت کی تين مسلک قرار پای١-حنبلي٢-اشعري٣-ماتريدي ،اور انهی مين ان کی فروعی مذاهب بهی شامل هين ،حنابله مين حنبلی مقلدين او اهل حديث قديم.......اشاعره مين مالکيه اورشافعيه اور ماتريديه مين حنفيه..............

خوهغه مسالک چې پدې علم کې مشهور دي ، هغه دادي چې اهل سنت والجماعت کې يوازې دوه، مسلکه شتون لري ،چې يو يې (اشاعره ) او بل يې (ماتريديه )دي ،دعلامه خالد محمود رح دتحقيق سره سم درې مسلکه پکې شتون لري ،چې په عين وخت کې همدا عقيدوي مسلکونه په فروعي مذاهبو کې ورګډ دي ،لکه پخواني اهل حديث او حنابله په حنبلي مسلک کې ،چې دايې هم دعقايدو او هم دفروعاتو مذهب دی ،مالکيان او شوافع بيا اشاعروو کې ، او احناف چې نن سبا ښه ډير پيروان لري ، په ماتريديه وو کې شامل دي او همدا حنفي مذهب يې نن دعقايدو او هم فروعاتو مشترک مذهب دی.

دجامعه بنوري کراچي شيخ الحديث او مهتمم مفتي محمد نعيم مد ظله خپل تصنيف (اديان باطله اور صراط مستقيم) کې داسې کاږي چې:دهند دمرادآباد دجامعه قاسميه شيخ الحديث مولينا شبيراحمد صيب وايې :چې ددې ټولو خبرو خلاصه داده ، چې سړی بايد د(سواد اعظم ) دجمهور امت سره وي او همدا حقيقت يا صفت دائمه اربعه وو په پيروانو او مقلدينو کې کتل کيږي ،چې هر دور کې لوی ، لوی علماء او مشايخ مقلدين پاتې شوي ،او بيا پدې باندې فکر پکار دی، چې د سواد اعظم اطلاق پر ديوبند مکتب فکر اشخاصو باندې کيدای شي، ځکه ددې مکتب فکر علماوو او مشايخو ته اهل سنت والجماعت ويل کيږي.

حضرت (مولينا ادريس کاندهلوي نورالله مرقده) په خپل تصنيف (عقايد الاسلام )کې دا هل سنت والجماعت دمصداق په باب ليکي چې:فرقه ناجيه يعني هغه ځوک چې دخدای جل جلاله له عذابه خلاصيدونکې ده ، صرف هغه داهل سنت والجماعت ډله ده.........او ټول فقهاء ، محدثين متکلمين ،اولياء او عارفين اهل سنت والجماعت دي ،دا ټول ددين په اصولو کې متفق دي ،که کوم اختلاف شته، هغه هم ددين په فرعي مسايلو کې دی ،چې هغه جزئي دی او کوم اصولي اختلاف نشته.

تاج الدين سبکي رح په (شرح عقيده ابن حاجب ) کې فرمايي چې :اهل سنت والجماعت محدثين ،متکلمين او صوفيای کرام په اصول الدين کې سره متفق دي ،اختلاف يوازې په مبادی او طرق استدلال کې دی ،دمحدثينو داستدلال سبک اولاً په سمعيه دلايلو يعني کتاب ، سنت او اجماع امت سره دی او دمتکلمينو داستدلال سبک لومړی بنياد په سمعيه دلايلو او ترڅنګ يې په عقليه دلايلو هم بناء دی ،دوئ پر نقل او عقل دواړو استدلال کوي ،او حضرات صوفيادی کرام بيا اولاً په شرعي دلايلو اوترڅنګ يې په کشف ،الهام او وجدان باطني هم استدلال کوي، چې ددې پوره بحث په ( حاشيه اشارات المرام من عبارات الامام (٢٩٨ )مخ کې شته.

وروسته( حضرت مولينا محمد ادريس کاندهلوي رح )

داهل سنت والجماعت په باب داسې وايې چې: *اوراس زمانی ميں فرقہ ناجيه (اہل سنت والجماعت )مذاہب اربعہ يعنی حنفيہ،مالکيہ اورشافعيہ اورحنابلہ ميں منحصر ہيں،ان چارومذہبوں سے خروج بدعت ہے،شرعاًغير عالم کوعالم کااتباع اور عقلاًناقص کوکامل کااتباع فرض اور لازم ہی،اور جو مريض طبيب کی تقليد نہ کريں اس کا انجام ہلاکت ہے ))عقايدالاسلام حصہ اول /٢٤١مخ.*

دحضرت مولينا محمد ادريس کاندهلوي رح له فوق الذکر تحقيق او وينا څخه په ډاګه څرګنديږي، چې نن سبا دفتنو دور دی او دفتنو په دې وخت وزمان کې دخلاصون لاره

دا ده ،چې دامت ددې منل شويو څلورګونو امامانو تقليد وشي او ددې څخه خروج ونشي، چې خروج به بدعت وي ، نو ځکه وايې چې داهل سنت والجماعت اطلاق صرف په څلورګونو مذهبونو او ددې په پيروانو کيږي ،که دمولينا ادريس کاندهلوي رح محققانه انداز ته ځير شو ، نو دډيرو فتنو او اختلافاتو څخه يې دنجات لاره په ګوته کړې ،اوهغه داسې چې دا ائمه اربعه دخير القرون دزماني خلک دي ،هغه څوک چې په اړه يې رسول الله صلى الله عليه وسلم دخير او صلاح شهادت ورکړی ،نو ددې پرځای چې ددې څوارلسمې پيړۍ د اوسيدونکي کوم کس داقتداء او پيروۍ لاره خپله شي، غوره داده چې دائمه اربعه وو ،پر شرعي استنباطاتو او مسايلو اعتماد وشي او دستونزو حل دهغوئ په تقليد کې ولټول شي.

هو !

که چاسره دکومې مسئلې په اړه شک وي، کولای شي چې دمذاهبو اربعه وو کتابونه په سړه سينه وپلټي او دمسئلې په باب دحجت قاطعيت او ارجحيت ځان ته معلوم کړي، نه داچې (خدای ج مکړه )هسې دمذهب له کلمې سره منافرت لري اودکوم نا معقول تعصب په وجه يې بې چون وچرا مذاهب ښه نه راځي.

ځکه دا هغه مذاهب دي ،چې لومړنۍ خښته يې له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه وروسته ،صحابوو ايښې او حجاز او عراق کې يې داجتهاد لومړنۍ مدرسې جوړې کړې. دلته به دموضوع دزيات اهميت او وضاحت لپاره (داسلام اساسات )ترسرليک لاندې دشهامت مجلې داووم کال پنځمې ګڼې ديوې علمي ليکنې څو پراګرافه دتوضيح لپاره را نقل کړو ، تر څو پرې دا مسئله چې دځينو له نظره خورا د ډير حساسيت ابعاد لري ،پرې څه رڼه کړو !

............... دتابعينو دوره کې دعلم فقه دوه لويې مدرسې جوړې شوي ،يوه مدرسه په حجاز او بله په عراق کې وه ،البته ددې دواړو مدرسو مشران او منتظمين صحابه کرام وو ،ځکه حجاز کې دمکې مکرمې دمدرسې زعيم او مشر ترجمان القرآن حضرت عبد الله بن عباس ،اوبيا ددې نه وروسته دده مولى( عکرمه او ابن جريج )وو ، دمدينې منورې دفقهي مدرسې ستر مهتمم او مشر حضرت عبد الله بن عمر او د ده څخه وروسته له تابعينو نه( سعيد بن مسيب رح ) و ،دعراق دمدرسې داهتمام اوزعامت چارې لومړی دجليل القدر صحابي حضرت عبد الله بن مسعود پر غاړه اوبيا ددې نه وروسته دده دشاګردانو چې يو پکې (حضرت علقمه رح )اوبيا( ابراهيم النخعى رح ) بيا (حمادرح) او بيا حضرت امام ابوحنيفه رح وو ،المکتبة الشاملة کې دتاريخ التشريع او نورو په حواله ليکي ،چې دحجاز دفقهي مدرسې داجتهاد پر وخت اعتماد زيات وخت پر کتاب او سنت اوډير کم په رأيه باندې ځکه و ،چې يو خو حجاز کې محدثين ډيروو ، اوبل دا درسالت کورو ،نو دحديث په سند کې به يې ايله يوه واسطه له حضرت پيغمبر سره راتله .دعراق دفقهي مدرسې په باب چې حضرت عبد الله بن مسعود يې زعامت کاوه او دا يې مؤسس و ، دوئ داسې ليکي چې(أمّا المَدْرَسَةُ الأُخْرَى - وَهِيَ مَدْرَسَةُ العِرَاقِ - فكانَتْ تَلْجَأُ إلى الرَّأيِ كَثِيرًا . وَالرَّأيُ عِنْدَهُمْ يَرْجِعُ إمّا إلى القِيَاسِ الأُصُوليّ ، وَهُوَ إلحَاقُ مَسْألة لا نَصّ فيهَا بِمَسْألة فيهَا نَصٌ شَرْعِيٌّ ، لعلة جَامِعَة بَيْنَهُمَا ، وَإمّا رَدُّ المَسَائلِ المُسْتَحْدَثَة إلى قَوَاعِدِ الشَّرِيعَةِ العَامّة ؛............يعني عراق کې غاليه شيعه ګان چې آن کله به يې حضرت علي العياذ بالله خدای او کله به يې له خدای سره مشابه کاوه ،همداسې به ملحدانو ،خوارجو او نورو فتنه ګرو ډلو چې شميرې ډيرو و ، کوشش يې داو ،چې دين کې تلبيس او خلط پيدا کړي ،نومجبوراً ورته ددې مدرسې استاذانو دروايت دقبوليت شروط سخت کړل ،اوددې لپاره يې غښتلې قيودات ولګول ،دروايت په قبوليت کې به فقهاوو ډير تفکر کاوه، اوپاخه شرطونه يې ورته کښيښودل ،چې له امله يې دفتنو دروازې بندې شوي ،دانو داسې شرطونه وو ،چې دحجاز فقهاوو ،دروايت دقبلولو لپاره نه وو ايښې، او نه يې ددې التزام کړی و ،نوچې به روايت الحديث پدې شرطونو پوره نه و ،نو نه به يې مانه، ځکه يې دنويو او

مستحدثو فقهي مسایلو حل دشریعت په عامو قواعدو کاوه او یا به یې زیات وخت پداسې رایه کاوه ،چې له اصولي قیاس سره به یې پیوند درلود ،چې داډول قیاس دادی چې یوه داسې موضوع چې نص پکې نه وي ،دکوم مشترکه علت یا جامع په بنسټ دداسې مسئلې سره په حکم کې مرتبط کړي ،چې په هغې کې نص راغلی وي، نودمقیس او مقیس علیه حکم سره یوشي.

دعراق فقهاووبه دصحابي عمل معتبر باله ،خوکله به چې دده له منقول روایت سره به په تصادم کې و ،نو دوئ به ویل ،چې دده راویت یا منسوخ شوی او یا مؤل دی ،همداسې به دوئ ویل چې کوم ثقه راوي ،چې دیوې عامه بلوی خلاف روایت وکړي، دا یا منسوخ دی او یا تیروتی دی ،چې دا دده قصدي کار نه وي ،هوکه به کوم قوي روایت پیدا شو ،او یا به پکې دتیروتنې احتمال کم و ،نو به یې دمسئلې داثبات لپاره مانه .

داهم باید ومنو ،چې حجازکې هم د(ربیعه بن عبدالرحمن )چې په ربیعة الرأی باندې مشهور و ،اودامام مالک رح استاذ هم و ، داسې فقهاء وو ،چې رأیه به یې دنویو مسایلوپه حل کې معتمده بلله، او همداسې په عراق کې داسې فقهاء وو ،چې اخذبالرأی به یې بده بلله ،لکه (عامر بن شراحیل) چې په (الشعبي) مشهور و( فقدْ عُرِفَ في هَذَا العَهْد منْ الحجَازيِّينَ رَبِيعَةُ بْنُ عَبْد الرَّحْمَنِ ، المَشْهُورُ بِرَبِيعَةَ الرَّأْي ، وَهُوَ شَيْخُ الإِمَامِ مَالك. كَمَا كَانَ فِي العرَاقِ مَنْ يَكْرَهُ الأَخْذَ بِالرَّأْيِ كَعَامِرِ بْنِ شَرَاحِيلَ المَشْهُورِ بِالشَّعْبِيِّ .)

دفقه ددې دریمې مرحلې زیات علماء او حملة العلم موالی یا آزادشوي غلامان وو ،لکه په مدینه کې د(عبدالله بن عمر )مولی (نافع )،په مکه مکرمه کې دعبدالله بن عباس مولی (عکرمه )په کوفه کې دبني والبه مولی (سعید بن جبیر )،په بصره کې امام حسن بصري رح او ابن سیرین رح ،په شام کې داامام اوزاعی) استاد (مکحول بن عبدالله)، په



مصرکې (یزیدبن ابي حبیب )چې دا دامام اهل مصر (لیث بن سعد )استاد هم و، اوداسې نور..... البته د(حضرت سعیدبن مسیب ،عامرالشعبي اوعلقمه بن قیس النخعي ) غونډې سوچه عرب توکمه هم پدې دورکې وو ،چې ځانونه یې علم ته وقف کړي وو ،دفقه دا عصراوزمان دامووي خلافت سره مصادف و ،خو دامهال فتنې یوازې په دارالخلافه کې محدودې وې ، بهر یې لا پوره سرایت نه وکړی ،همدا مهال به فقهاوواوعلماوو ،یوله بل سره مناظرې او مناقشې کولې اودحق په درک سره به یې یوبل ته تنازل هم کاوه ،خو مجموع کې دا دور هم دخیر دور فقاهت و ،او رسول الله یې هم په باب دخیر او صلاح شهادت ورکړی و :(فَقَدْ صَحَّ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "خَيْرُ النَّاسِ قَرْنِي ثُمَّ الذِينَ يَلُونَهُمْ ، ثُمَّ الذِينَ يَلُونَهُمْ " )رواه الشیخین )......

ښایې اوس به مو دا رڼه کړې وي، چې مذاهب کومه نوې پدیده نده ، بلکې دسلفو شرعي تګلاره ده، چې دمستحدثو مسایلو لپاره یې دامت اسلامیه مشکلات حل کړي او ددې پرځای چې ورسره تعصب وشي ، غوره به وي، چې په اړه یې له انصافه کار واخستل شي ،او هم موپه څلور ګونو مذاهبو کې داهل سنت والجماعت هغه انحصار چې دنامتو علماء پرې ترکیز کوي او دمولینا محمد ادریس کاندهلوي رح په څېر علماء ترې خروج بدعت بولي ،دسلفو له تګلارې معلوم کړې وي، چې دفتنو پیر دی اودمذاهبو تګلاره خپلول یوه اړتیا ده او په همدې کې نجات او دا سلافو عقاید او استنباطات اخښل شوي دي !والله اعلم نوربیا .....

# دحماس اوالفتح ترمنځ دسولې دنوي توافق په اړه اندېښنې اوهيلې

شهيد زوى

دا چې دخوراواوږدواختلافاتو نه پس د حماس او الفتح ترمنځ دپخلاينې اودملی وحدت دحکومت جوړونې توافق رامنځته او په راملّه کې اسماعيل هنيه او محمودعباس پدې اړه تړون لاسليک کړ دنړۍ مسلمانان يې ډېرخوښ کړل او دازاد فلسطيني دولت هيلې يې تر يوحده بيا راژوندئ کړې؛ ددې تازه توافق له مخې به دالفتح په سرپرستۍ کې حماس او الفتح په غزه او لويديځې ترانکې کې په ۵ مياشتو کې دننه دننه ولسي دولت جوړوي او ۶ مياشتې پس به په دواړو سيمو کې عام انتخابات ترسره کيږي.

ددې لپاره چې محترمو لوستوالو ته موضوع ښه روښانه شي دلته دنږدې ماضي دخوخبرورايادول اړين بولم. په۱۹۴۷م چې اسرائيلو دفلسطين خاوره اشغال کړه نو ورسره سم دفلسطين مسلمانانو دازادۍ تحريک پيل کړ خو له بده مرغه چې پدې تحريک کې په صحيح معنو کې جهادي روح نه و، امريکا، برتانې او نورې کفري نړۍ دخپلو مکارو، عيارو او غلامو رسنيو پرمټ دا تحريک دخاورو دازادۍ دعامو تحريکونو پرڅېر يو دازادۍ قومي تحريک معرفي کولو، دا يې ديهودانو او عربانو يوه قومي شخړه کرځولې وه او عام ذهنيتونه يې داسې برابرول چې کنې دا يواځې دعربانو مسئله ده او دنورې اسلامې نړۍ ددې سره هيڅ تړاو نشته او نه دا عقيدوي او فکري حرکت دی؛ نړيوال کفر کوښښ کاوه چې دا حرکت داسې سيکولر حرکت وکرځوي چې بېخي داسلام، دين، مسلمان او جهاد نوم وانخلي، يواځې دازادۍ نوم اخلي، صرف مظاهرې کوي، هيځکله توپک ته لاس نکړي او عقيده يې داسې جوړه شي چې داسرائيلو پرضد لاريونونه دازادۍ يواځنی لار ده.

د۱۹۸۰م پورې خبره همداسې روانه وه خو ددې کال نه پس دا فکر په بدلېدو شو؛ دښه تدبير، عالي ارادې لوړ عزم او جرأت سمبول او دايوبي اصيل وارث شيخ احمد ياسين په ۱۹۸۰م کې په غزې کې دحماس په نوم دجهادي غورځنګ بنسټ کېښود او دفلسطين دازادۍ حرکت يې دکاميابۍ په لور روان کړ، دقوميت نه يې خبره اسلاميت ته کړه، او په خپلو ډېرو هڅو او کوښښونو يې دمسلمانانو په عامه ذهنيتونو کې دا خبره ورواچوله چې داشغال شوي فلسطين او مقبوضه بيت المقدس ازادول يواځې دعربانو نه بلکې دټولې اسلامي نړۍ مسئوليت دی او دا دټولو مسلمانانو مسئله ده.

شيخ احمدياسين چې دفلسطين مسلمانانو ته دجهاد عملي لار ورښودله نو دفلسطين ولس بيخي بې وسلې و او په مقابل کې يې داسرائيلو په نوم دسيمې يواځنی اتومي طاقت و ؛ داسبابو پدې نړۍ کې دادواړه اړخونه يو بل سره دپرتله کېدو وړنه وو خو داچې شيخ احمدياسين په خپل ولس کې دجهاد نظريه په ربښتيا ژوندۍ کړې وه نو دټول فلسطين او په ځانګړې توګه دغزې مسلمانان د اسرائيلو داتومي ځواک نه مرعوب نه شول او نه خپل بې وسلېتوب دجهاد نه کېنول بلکې دخپل قائد په لار ښوونه دټول فلسطين او خصوصاً دغزې تنکو ځوانانو داسرائيلو په نوم داتومي غاصب ځواک په مقابل کې دکمزورې وسلې پرمټ يانې دډبرو ويشتلو نه خپل جهاد پيل کړ ؛ پکې په لسګونو زره شهيدان ټپيان ؛ او زندانيان شول خو چې شاته نه شول او خپل جهاد يې جاري وساتلو نو الله تعالی ځواکمن کړل ؛ په همدې محصورې او دنړۍ نه په پرې شوې غزې کې مسلمانو ځوانانو راکټونو او اتومات ټوپکونو ته لاس رسی وموند او په خپلو لاسونو يې داسې توغندي هم جوړ کړل چې يو شمېر يهود مېشتې سيمې يې پرې هدف وګرځولای شوې ؛ اوترټولو مهمه داچې دحماس مجاهدينو کې مېړانه ؛ پردين دقربانۍ احساس ؛دشهادت سره مينه اوجنګي مهارت دومره قوي شو چې هغه اسرائيل چې د ۱۹۶۷م جنګ کې يې ۴ سترو عربي هيوادونو ته په ۶ ورځو کې ماتې ورکړې وه پر غزې د ۲۰۰۸ کال داسرائيلو دوحشي يرغل پرمهال اسرائيلو په ۲۴ ورځو کې حماس ته ماتې ورنکړای شوه او نه يې غزه ونيوله.

په غزې کې دعملي جهاد پيل کېدو نه پس حماس داسرائيلو دټولو نه ستر دښمن وګرځېدلو او غزه يې دخاص عتاب لاندې راغله ؛ داسرائيلو په حکم دغزې نه مصر ته په تلو راتلو کې سختې پيل شوه او ورځ تربلې زياته شوه دغزې د اوسېدونکو په وړاندې به دمصر سرحد زياتره وختونو کې تړلی شوی و او کله ناکله به پرانستی و.

چې خبره رالنده کړو نوحماس چې دعملي جهاد ترڅنګ يې په ډېر اخلاص دولس خدمت او عام المنفعه کارونه هم کول نو په ولس کې يې ډېر زيات محبوبيت ترلاسه کړ او کله چې د ۲۰۰۶ کال په جنورۍ کې په فلسطين کې عام انتخابات ترسره شول نو حماس پکې ۷۶ او دمحمود عباس ګوند پکې ايله ۴۳ چوکۍ وګټلې ؛ حماس ددومره چوکيو په لرلو په يواځې ځان دولت جوړولای شو خو ددې لپاره چې فلسطين ولس ونه ويشل شي او الفتح حالات خراب نکړي نو الفتح يې هم په دولت کې شريک کړ.

دحماس دومره محبوبيت او په انتخاباتو کې ستر بريالیتوب داسرائيلو، امريکا او ټول لويديځ ترڅنګ دعربي هيوادونو شاهانو، ديکتاتورانو او اميرانو ته هم دمنلو وړ نه و نو محمودعباس دهمدوئ په اشارو او ددوئ دخوشالولو لپاره دحماس سره ډېرنا وړه سلوک پيل کړ؛ رومبی خو يې دقدرت په انتقال کې ډېر ځنډ وکړ او چې حماس ته قدرت انتقال شو نو فلسطيني دولت ته بسپنه ورکونکو ادارو پيسې دحماس په دولت بندې کړې ترڅو ژر دحماس دولت فلج شي خو محمودعباس ته په مليونو ډالر ورکول کېدل ؛ پدې هم بسيا ونه شوه بلکې محمودعباس خپل ټول ځـوانان مـسلح کـړل او دفلسطيني اداري دامنيتي کار کونکو په مقابل کې يوه قوي مليشا جوړه شوه دې مليشې داسرائيلي فوځيانو په ځېر په يـو او بـل نـوم دحـماس دکارکونکو نيول پيل کړل او چـې دنيونـو خـبره يـې دصـدراعظم تـر دفـتره هم راورسـېدله نـو حـماس هم دفاعي اقدامات پيل کړل چې په ځيني مواردو کې خونړۍ جګړې هم رامنځته شوې.

او چې نـوره ګـوذاره کرانـه شـوه نـو غـزه يـې خپـل مقـر وګرځـاوه او دمحمودعباس مليشې يې ترې وه ويستې ؛ بس په همدې حماس غزې ته راټول شو او محمودعباس خپله پاچاهي په لويديځې غاړې کوله، محمودعباس دفلسطيني سيمو ټولې لارې پرغزې بندې کړې او دغزې اوسېدونکې ارشول چې خوراکي مواد او داړتيا وړ نورتوکي دمصر نه راونيسي خو له بده مرغه چې مصري واکمن حسن مبارک يې پرمخ دمصر سرحد هم په کلي ډول وتړلو او داسې يې وتړلو چې پرغزې د ۲۰۰۸ کال داسرائيلو دوحشي يرغل پرمهال يې هم خلاص نه کړ، دې وحشي يرغل ۲۴ ورځې دوام وکړ، غزه دکربلا په ميدان بدله شوې وه، يو لور ته هم ترې تلل راتلل نه شو کېدای، دخوراکي موادو سخت قلت و، روغتونونه دټپيانو نـه ډک و او دوا نـه وه، دبمونـو باران و، او هـره ورځ پـه سـونو تنـان شهيدانېدل يا ټپيان کېدل، پدې سخت حالت کې هم دمحمودعباس او حسن مبارک زړونه نرم نه شول او نه يې دغزې داوسېدونکو پرواندې سرحد پرانيست.

نو غزه چې ددې جنګ نه وړاندې د ۵ کلونو راهيسې په کلي توګه محاصره او کلا بنده وه، دا دغزې داوسېدونکو لپاره ډېرې سختې شپې ورځې او په شعب ابي طالب کې درسول الله صلی الله عليه وسلم او مسلمانانو محاصرې ته ورتـه حالـت و، داسرائيلـو وحـشي بمبـارۍ او يرغلونـه وو، دحـسن مبـارک او محمودعباس ستره جفا وه، داسلامي نړۍ دحاکمانو بې حسي وه، دملګرو ملتونو، امريکا او دبشر دوستۍ ددروغجنو دعوا کونکو لويديځوالو بشر دښمني وه، دقوت لايموت شپې ورځې وې ؛ کواکې نړۍ دخوراکي موادو دبنديز له لارې دغزې دټولومسلمانانووژل غوښتل؛ خو په اوسېدونکو يې آفرين چې دمصر اوغزې ترمنځ دخورا دنګ اوقوي کنکريټي ديوال نه لاندې يې په سونو تونلونه کيندلي دي چې پکې تر ۳۰ متروپورې ژورو او تريو کلومتر پورې اوږده تونلونه هم شته چې له همدې لارې په ډېر مشقت او تکليف دمصر نه خوراکي مواد او داړتيا وړ نور توکي راوړل کېدل اوپه همدې دغزې اوسېدونکوخپله ساه ساتلې وه ؛ دا دظلم نه ډک داسې حالت و چې په اسرائيلو کې دننه يو شمېر يهودي ليکوالانو يې هم پرضد ليکنې وکړې، اسرائيلو کې په زړونو يهودانو دلومړي وزير نتن ياهو پرضد لاريونونـه وه ويستل او ويـې ويـل چـې پرغـزې داسرائيلي دولت دظلمونـو له امله اسرائيل په نړۍ کې بدنامېږي نو دا په حقيقت کې داسرائيلو سره ظلم دی، همدا راز په نيويارک کې درچرډ ليـوي پـه ځېـر سخت زړي يهـودي هم ديتـه اړشـو چې ؤوايـې چې دغزې محاصره غيراخلاقي ده، او مور دانسانانو دهغې وژنې حمايت نه شو کولای چې قـاتلين پکـې يهـودان وي ؛ خـو له بـده مرغه چې پدې سخت حالت کې هم محمودعباس دغزې پرمظلومو مسلمانانو ترحم ونکړ اونه يې ددوئ په وړاندې تړل شوې لارې پرانستې بيا هم دغزې په واقعي او غيرتمنو مسلمانانو او دحماس په قيادت آفرين چې داسلام دسر لورۍ لپاره يې دا ټول تکليفونه په پوره صبر او استقامت وزغمل، دسپېڅلو اهدافو نه تېر نه شول، دجهاد ته يې شاته نکړه ؛ دټولې نړۍ دفشارونو سره سره يې هم داسرائيلو په رسميت پېژندلو غوښتنه رد کړه او رښتيا دا ده چې اسرائيل، امريکا او ټول لويديځ ناکام او غزه کاميابه وه ؛ تردې چې په عربي نړۍ کې دبدلونوپه لړکې دحسن مبارک اداره ړنګه شوه او مصرکې عبوي دولت جوړ شو ؛ دمصر عبوري دولت داسرائيلو دخفګان هيڅ پرواه ونه ساتله او په ډېر جرأت يې دهاغه ۲۰۱۱ کال دمئ په ۲۸ مې نېټې دغزې داوسېدونکو پرمخ دمصر دسرحد پرانستل اعلان کړل، چې اسرائيلو پرې خپل سخت خفګان ښکاره کړ.

دمصر زندانونو کې زنداني شوي ټول فلسطينيان يې ازاد او خپلو کورونه ته ورسول اوتر ټولو مهمه داچې دمصر دعبوري دولت دبانديو چارو وزير ډاکټر نبيل العربي دامريکا دپخواني ولسمشر سره دلېدو پرمهال هغه ته په ډېرو روښانو

> **نو اوس چې الفتح او حماس دواک په شريکولو او ګډ حکومت جوړولو يوځل بيا توافق ته ورسېدل دفلسطين دمسلمانانو ترڅنګ دټولې نړۍ لپاره دخوښۍ خبر دی خو دا چې واک ته دحماس درسېدلو نه ترننه دمحمودعباس الفتح غورځنګ نه يواځې دحماس بلکې دټولې غزې دمسلمانانو پرضد اسرائيلو ته ورته دريځ غوره کړی و او اوس هم لا دګڼو بنسټيزو مسائلو په سر ددواړو اړخونو ترمنځ اختلافات شتون لري نو ځه سره له دې چې ناهيلی نه يم دا وسنې رامنځته شوي توافق په اړه ډېر خوشبين هم نه يم او باور نه لرم چې ډېر دوام به وکړي.**

تکو وویل چې دحماس او الفتح ترمنځ سوله راوستل به یې دټولو کارونو په سر کې وي.

دا خبره سره له دې چې دعبوري دولت دباندنیوچارو دیو وزیر خبره وه خو په نړۍ کې دا داسرائیلو په اړه دمصر په سیاست کې په بدلون تعبیر شوه او ډېرو رسنیو کې راغلل چې مصر چې دتېرو ۳۰ کلونو راهیسې داسرائیلو دوست هیواد ګڼل کېدلو ددې نه پس به داسرائیلو نه بلکې دفلسطنیانو دوست هیواد وي.

ډاکټر نبیل العربي چې لا له وړاندې نه داسرائیلو مخالف ګڼل کېدلو دخپلې خبرې عملي ثبوت یې وړاندې کړ، دحماس او الفتح سره یې دسولې په اړه مسلسلې رابطې پیل کړې، محمودعباس چې دحماس سره دناوړه سلوک له امله یې په فلسطیني ولس او دنړۍ مسلمانانو کې محبوبیت ډېر کم شوی و داسرائیلو دسپکې رویې نه هم تنګ راغلی و؛ دحسن مبارک داداړې سوری یې هم له سره لرې شوی و، دتیونس دولسمشر زین العابدین او دمصر دولسمشر حسن مبارک بدانجام او ورسره دلویدیځ بې وفایې یې هم مخې ته وه نو دډاکټر نبیل دتماس نه پس یې دموکې نه په استفادې حماس ته دسولې پیغام واستاوه، حماس چې لا دحکومت جوړولو پرمهال قرباني ته تیار او الفتح ته یې ډېر وزارتونه ورکړي وو نو دفلسطیني ولس دیو موټي کولو او عالي اهدافو ته درسېدلو په خاطر یې تېر هر څه هېر کړل او دالفتح دسولې پیغام ته یې لبیک وویلو چې ډېر ژر دفلسطین مسلمانانوپه عمل کې هم دسولې درامنځته کېدو زېری واورېد او دمصر په پلازمېنې قاهره کې ۲۰۱۱داپریل په ۲۷ مه نېټه دمحمودعباس او خالد مشعل ترمنځ دسولې سند لاسلیک شو او دعبوري دولت په جوړولو او یو کال کې دننه په انتخاباتو کولو هم اتفاق راغلو.

خواسرائیلي دولت دحماس او الفتح ترمنځ دسولې دترون په رامنځته کېدلو سخته ناخوښي څرګنده کړه، په یروشلم کې دبرتانې دپخواني لومړي وزیر سره دلېدلو نه پس او بیا دامریکا کانګرس ته دوینا پرمهال دصهیوني دولت لومړي وزیر نتن یاهو وویل چې ،،داسرائیلو دولت به دهغې ادارې سره څرنګه سولې ته چمتو شي چې نیمه برخه (حماس) یې داسرائیلو له منځه تلل غواړي او دبن لادن وژنه غندي؛ محمودعباس باید دحماس سره کړی تړون لغوه کړي ترڅو سولې ته لار برابره شي،،

ددې ترڅنګ اسرائیلو محمودعباس ته دفلسطیني محصولاتو انتقال هم ودرولو

دمصرعبوري اوبیا ورپسې دمحمد المرسي حکومت دواړه دسیمې دمسلمانانودګټونورو ستونزودحل ترڅنګ دحماس اوالفتح ترمنځ دسولې لپاره هم په پوره اخلاص متې رانغښتې وې خوداچې کفري نړۍ پرې نه ښودل نوپه عمل کې داهرڅه په ټپه ودرېدل .

نو اوس چې الفتح او حماس دواړه په شریکولو او ګډ حکومت جوړولویوځل بیا توافق ته ورسېدل دفلسطین دمسلمانانو ترڅنګ دټولې نړۍ لپاره دخوښۍ خبر دی خو دا چې واک ته دحماس درسېدلو نه ترننه دمحمودعباس الفتح غورځنګ نه یواځې دحماس بلکې دټولې غزې دمسلمانانو پرضد اسرائیلو ته ورته دریځ غوره کړی و او اوس هم لا دکښو بنسټیزو مسائلو په سر ددواړو اړخونو ترمنځ اختلافات شتون لري نو څه سره له دې چې ناهیلی نه یم دا وسنی رامنځته شوي توافق په اړه ډېر خوشبین هم نه یم او باور نه لرم چې ډېر دوام به وکړي.

داسرائیلو دقبضې نه دمسجداقصی دازادولو؛ دازاد خپلواک فلسطیني دولت دقیام ؛ داسرائیلو په زندانو کې د۱۵ زرو نه دزیاتو فلسطیني مسلمانانو دشتون او په القدس او لویدیځې ترانګی کې دنویو یهودي مېشت ځایونو په اړه دحماس موقف ډېر اصولي او نه په شاتلونکی دی خو دمحمودعباس دریځ بیا په دې ټولو مواردو کې دومره نرم(یانې کمزوری) دی چې دامریکا او نور لویدیځ ترڅنګ پخپله اسرائیلو ته هم دمنلو وړ دی؛ همدا راز اسرائیل او حماس دواړه یو بل ته دیواځنې دښمن په نظر ګوري حماس په اسرائیلو توغندویې بریدونه کوي او اسرائیل دحماس مشران او مرکزونه په نښه کوي او دغزې هره برخه چې وغواړي بمباروي یې؛ خو برعکس دمحمودعباس روابط داسرائیلو سره تردې حده دوستانه دي چې وایې دفلسطیني دولت دجوړېدو نه پس هم په خپلې سیمې کې تر ۵ کلونو پورې داسرائیلي فوځیانو دشتون طرفدار یم.

حماس چې په رښتیني معنی دفلسطین دازادۍ غورځنګ دی نو ترڅنګ یې یوه ستره خیریه موسسه او په فلسطین کې دفلاح عامه کارونو یوه فعاله اداره هم ده ؛ جمهوري سیاست مني او له همدې لارې دولس دقاطع اکثریت په رایو واک ته رسېدلی و خو دا چې دغاصبو اسرائیلو په مقابل کې یې دریځ روښانه، اصولي او نه په شاتلونکی دی او دخپل هیواد دازادۍ لپاره دنړۍ په سطحه دسیاسي هڅو ترڅنګ داسرائیلو په مقابل کې په مسلح مقاومت هم عقیده لري او عملاً پرې لګیا دي نو څکه داسرائیلو ترڅنګ دامریکا او نور لویدیځ دسترګو ازغی دی څکه خو یې په تېرو انتخاباتو کې دحماس بریالیتوب او دحماس په لاس جوړ شوی دالفتح سره ګډ دولت ونه زغملو او دفشار په نتیجه کې یې ډېر ژر الفتح دحماس نه راجدا شو نو اوس چې له بده مرغه مصر او خلیجي څو هېوادونو حماس تروریسته ډله ګڼلې ده محمودعباس به داسرائیلو، امریکا او نور لویدیځ ترڅنګ دمصر او خلیجي هېوادونو دفشار زیات ښکار شي؛ هغه به ډېر ژر خپل موقف بدل کړي او هماغه څه به وکړي چې نړۍ یې ترې غواړي؛ خصوصاً په داسې حال کې چې امریکا ددې توافق په اړه خپل تشویش ښکاره کړی او دامریکا دباندنیو چارو وزارت ویاندې جین پشاکي ویلي چې دا توافق امریکا ته مشکلات راولاړوي نو څکه موږ دتوافق دې اعلان ناهیلي کړي یو؛ دا توافق هم زموږ او هم داسرائیلو او فلسطینیانو ترمنځ دسولې روانو مذاکراتو او هڅو ته زیات تاوان رسوي مېرمن پشاکي زیاته کړه چې دخپل دې تشویش نه یې محمودعباس او اسرائیل خبر کړي هم دي.

دامریکا په کانګرس کې دبهرنیو مرستو دکمېټې مشر ددې توافق په اړه خپله اندېښنه ښکاره کړیده او کوانس یې کړیدی چې امریکا به ۵ سوه میلیونه ډالریزه هغه مرستې بندې کړي چې هرکال یې دفلسطین کورواکه دولت ته ورکوي.

نو یقیني ده چې په داسې حالت کې به پرمحمودعباس دتېر پرتله فشار زیات وي چې په مقابل کې به یې په خپل درېځ پاتې کېدل دمحمودعباس لپاره کابو ناشوني وي ؛ داسې ښکاري چې هرڅه چې لویدیځ غواړي محمودعباس به هماغه کوي چې ورسره به توافق له منځه ولاړشي.

اوس پوښتنه داده چې محمودعباس پدې ناموافقو حالاتو کې دحماس سره پخلاینې او توافق کولو ته څنگه تیار شو ؟

ددې پوښتنې جواب ډېر ساده دی او هغه دا چې دمحمودعباس درېځ دعامو فلسطینیانو لپاره ډېر دمایوسی نه ډک و او پدې وخت کې دهغه دمحبوبیت کچه ډېره زیاته رالوېدلې وه؛ ددې توافق او دملي دولت جوړولو داواز پورته کولوله لارې اوس هغه فلسطیني ولس کې خپل محبوبیت زیاتول غواړي ترڅو په راتلونکو انتخاباتو کې یې دبریالیتوب چانس زیات شي؛ نو که دحماس په مقابل په ډېرو رایو اخستلو وتوانېد خپل حکومت به جوړ او په ډېرې اسانی به حماس له مخې نه لرې کړي او که چېرته حماس بریالی شو نو محمودعباس به دنتایجو دمنلو نه انکار وکړي چې ورسره به بیا په فلسطین کې کورنی جنگ پیل شي چې همدا داسرائیلو هیله ده؛ نو شاید دتوافق ددې دومره لوي اقدام ترشاهمدا هدف او همدا داډ وي.

**اوس چې له بده مرغه مصر او خلیجي څو هېوادونو حماس تروریسته ډله گڼلې ده محمودعباس به داسرائیلو، امریکا او نور لویدیځ ترڅنگ دمصر او خلیجي هېوادونو دفشار زیات ښکار شي؛ هغه به ډېر ژر خپل موقف بدل کړي او هماغه څه به وکړي چې نړۍ یې ترې غواړي؛ خصوصاً په داسې حال کې چې امریکا ددې توافق په اړه خپل تشویش ښکاره کړی او دامریکا دباندنیو چارو وزارت ویاندې جین پشاکي ویلي چې دا توافق امریکا ته مشکلات راولاړوي نو ځکه موږ دتوافق دې اعلان ناهیلي کړي یو**

دا خبرې موږ دتېرو او روانو حالاتو په پام کې نیولو سره وکړې نور خو به کېږي هغه چې خدای جل جلاله یې غواړي ددواړو اړخونوترمنځ داختلافاتو له امله چې دازادی تحریک اودفلسطین مسلمانانو ته کوم ستر تاوانونه ورسېدل امید دی چې دواړوبه درک کړی وی اونوربه دکوچنیوخبرو اوشخصي کتوپه سر عالي اهداف له لاسه ورنکړي . ان شاءالله

خو اوس داسرائیلو یو اقدام یا وینا هم اسرائیلو ته کټه نه ورسوي بلکې ورته تاوان ورسوي او سیمې هیوادونو سره یې دوستي ورو ورو په دښمنی بدلېږي، ۶۰ کاله وړاندې هم اسرائیل یواځې وو او دسیمې هیوادونو ورته ددښمن په سترگه کتل خو له بده مرغه چې بیا دترکې سیکولر دولت، دایران رضاشاه پهلوي دمصر حسن مبارک او داردن شاه اسرائیلو ته ددوستی لاسونه ورکړل او



داسرائیلو یواځیتوب له منځه ولاړ خو اوس بیا له نیکه مرغه اسرائیل په سیمه کې دیواځیتوب لور ته روان دي ځکه چې اردن کې دشاهي دولت بنستونه ړیدونکي دي، دحسن مبارک اسرائیل دوسته او غلامه اداره په مصر کې رنگه شویده او پرځای یې دفلسطیني مسلمانانو خواخوږي قدرت ته رسېدلي دي هغه خواخوږې اداره چې دباندنیو چارو وزیر یې دالقدس پرضد داسرائیلو دشومو پلانونو غندنه کړیده او په واضحه ټکو یې ویلي دي چې مصر به خپل څنگ کې په فلسطینیانو ظلمونه ونه زغمي په ترکیه کې داسرائیلو سره نفرت کونکي او دفلسطینیانو خواخوږی دعدل او پرمختگ گوند په واک کې دی، ایران کې هغه احمدي نژاد واکمن دی چې په ډاگه داسرائیلو دله منځه تللو خبرې کوي، په غزې کې حماس دی او په لبنان کې حزب الله دی، چې په لند وخت کې امریکا ټوټه شي داسرائیلو دا داډ به هم ختم شي، دلویدیځ نه راغلي زیاتره یهودان به بېرته لویدیځ ته وتښتي، دصهیوني دولت بنستونه به ونړېږي او دمسلمانانو رومبی قبله به ازاده شي...

الله او ددوا او خوراکي موادو نه ډکو ۱۰ سمندري جازونو قافله چې تمه کېږي ددې میاشتې پای جون په وروستیو ورځو کې دیونان نه غزې ته روانه شي یو شمیر امریکایي یهودان پکې ددې لپاره غزې ته ځي ترڅو نړۍ ته دا وښایې چې پرغزې داسرائیلو دظلمونو طرفداران ندي.



# پکتیکا په ولایت کې د علم رڼا او د عرفان وړانګې

رښتیا ده چې علم رڼا ده او د علم او پوهې په ذریعه یو هیواد د پرمخ تللو هیوادونو په قطار کې ودریدلی شي.
هر چا ته معلومه ده چې د سیمې ځینو هیوادونو په تیرو څو لسیزو کې د علم په ذریعه په ساینس، اقتصاد، طب، او نورو برخو کې ترقي کړې ده
او زمونږ هیواد او هیوادوال په دغه موده کې د جنګ او جګړو په بل کړای شوي اور کې سوزول کېدل.
ددې ترڅنګ د یرغلګرو او متجاوز طاقتونو لخوا په عین حال کې دا کوشش هم شوی دی او کېږي چې افغانان د علم او پوهې څخه بې برخې شي اویا اقلاً د تعلیم په ټیټه سطحه و درول شي.
تر څو افغانان هر وخت دغو خارجي یرغلګرو او د دوی اړوند تنظیمونو او اینجوګانو ته محتاج وي.
خو لله الحمد افغان مجاهد ولس که له یوې خوا د خپلو سرونو په نذرانه کولو سره د خپل دین او وطن څخه کلکه دفاع کړې همدا رنګه یې د هیواد په داخل کې د ګرم جنګ په حالت کې

او د هیواد څخه بهر د مهاجرت او مسافرت په حالاتو کې پخپلو بچیو باندې درسونه وویل او د جهادي میړانې په څیر یې د تعلیم په برخه کې هم خپله میړانه وښودله او دا د افغانانو همت او د الله تعالی نصرت وه او ده.
چې د دومره اقتصادي او ټولنیزو ستونزو او سختو ذهني فشارونو باوجود یې خپله تعلیمي سلسله جاري وساتله.
د افغان مجاهد ولس ددې کوششونو یو ډګر د هیواد په جنوب کې د پکتیکا ولایت دی، داخل محترم لوستونکي په دې ولایت کې د تعلیم او تربیې له بهیر او په دې برخه کې د افغانستان اسلامي امارت د تعلیم او تربیې کمیسیون د فعالیتونو څخه خبر وو.
پکتیکا ولایت د هیواد په جنوب کې یو پُر نفوسه او د پراخو لرو او غریبزو سیمو لرونکی ولایت دی چې دغه ولایت په اداري تشکیل کې (۲۲) ولسوالۍ لري، که څه هم په دغه پراخه سیمه کې په صحیح او مناسب ډول د علم او تعلیم عام کول ډیرو امکاناتو او وسائلو ته اړتیا لري، خو ددې ولایت مجاهد او غیرتي ولس د امکاناتو د

کمبود د پروا ساتلو څخه په غیر د خپلو بچیانو تعلیمي بهیر جاري ساتلی دی.

او د افغانستان اسلامي امارت د تعلیم او تربیې کمیسیون لخوا هم په دغه ولایت کې د تعلیم او تربیې د نظم او پرمختګ په خاطر په زړه پورې اجراءات ترسره شوي او ادامه لري.

د پکتیکا ولایت لپاره د تعلیم او تربیې اداري تشکیل:-

د افغانستان اسلامي امارت د تعلیم او تربیې کمیسیون د پکتیکا ولایت اړوند د تعلیم او تربیې د کارونو د ترسره کولو لپاره په اداري تشکیل کې یو رئیس، دوه معاونین لري. او د دغه ولایت (۲۲) ولسوالیو لپاره د اوس لپاره (۱۸) د تعلیم او تربیې مدیران لري، که څه هم د تعلیم او تربیې د لائحې په اساس باید په هره ولسوالۍ کې یو د تعلیم او تربیې مدیر وي خو فعلاً په دې ولایت کې داسې ولسوالۍ چې د کار ساحه یې کمه ده او یوه بلې سره نیژدې وي د داسې دوه ولسوالیو لپاره یو مدیر مقرر شوی دی لکه تروو او وازیخوا ولسوالۍ، او د ګومل او شکین ولسوالۍ او د جانخیلو او یحیی خیلو ولسوالۍ.

د ریاست دوه تنه معاونین او د ولسوالیو ټول مدیران په دوام داره توګه په داخل د ولایت کې او سېږي او خپلې اړونده چارې له نېږدې څخه ترسره کوي او څارې یې چې؛ د دوی د کارونو د اجراء لپاره د کمیسیون لخوا ورته امکانات او د کار وسائل برابر کړل شوي دي لکه موټر سائکلونه او د دې روغنیات او نور مصارف، مخابرې او موبایل تیلفونونه او د دې ضروریات.

پکتیکا ولایت کې دیني مدارس:

د پکتیکا په ولایت کې (۱۲۲) یو سل دوه شپیته بابه دیني مدارس او دارالحفاظونه فعال دي، په دې ټولو کې (۱۵۲۸۲) پنځلس زره دوه سوه دوه اتیا تنه طالبان په زده کړه بوخت دي چې د (۵۷۸) پنځه سوه اته اویا تنو استاذانو لخوا یې د تدریس چارې مخ په وړاندې بیول کېږي.

همدارنګه (۲۸۲) دوه سوه دوه اتیا بابه کلي والي مدرسې هم د پکتیکا ولایت د تعلیم او تربیې د ریاست لخوا فعالې کړی شوې دي. چې په داسې قسم مدرسو کې هم (۱۲۴۴۲) دولس زره څلور سوه دوه څلویښت تنه د کلي او محلې هلکان کوچني ماشومان په درس بوخت دي چې ورته د تدریس کولو لپاره (۳۷۴) درې سوه څلور اویا علماء او حُفّاظ کرام مقرر کړی شوې دي.

پکتیکا ولایت کې مکتبونه:

پکتیکا ولایت کې ټول (۲۴۷) دوه سوه اوه څلویښت بابه مکتبونه شتون لري اعم لدینه چې لیسې دي، که متوسطې، او که ابتدائیه ښونځي، په دغو ټولو مکتبونو کې (۸۵۷۵۹) پنځه اتیا زره اوه سوه نهه پنځوس تنه شاګردان درس وایي د تدریس لپاره یې (۳۷۰۲) درې زره اوه سوه شپږ تنه معلمان په کار ګمارل شوي دي.

د ولایت په دغو تعلیمي ادارو کې اکثره یې د اسلامي امارت د تعلیم او تربیې د ریاست د مستقیم یا غیر مستقیم کنترول او مراقبت لاندې دي.

په تعلیمي ادارو کې د اسلامي امارت د معارف ریاست فعالیتونه څه په دا ډول دي.

(۱) د پکتیکا ولایت د اسلامي امارت د معارف ریاست لخوا د ولایت دیني مدرسو او کلي والو مدرسو ته په خپو مرحلو کې دغه لاندې کتابونه په ښه ډېره اندازه اخستل شوې دي: نوراني قاعدې، الم پارې، سیقول پارې، عمّ پارې، مکمل قرآن مجیدونه، شروط الصلاة، تعلیم الاسلام، پنج کتاب، د اول صنف کتاب، د دوهم صنف کتاب، د دریم صنف کتاب.

دغه کتابونه د ولایت د ټولو ولسوالیو مدرسو ته توزیع شوې د ي او دغه لړۍ روانه ده چې د نوي تعلیمي کال لپاره به هم داسې ضروري درسي مواد د خپلو امکاناتو په نظر کې نیولو سره واخستل او توزیع کړل شي.

(۲) په ديني مدارسو کې يو تعداد داسې مدرسې هم وي چې دکرزي داجيرې ادارې په تشکيل کې رسمي شوې وي او ورسره ثبت وي، چې داسلامي امارت دمعارف رياست دمسئولينو او کارکونکيو په هلو ځل دغو مدرسو د کرزي د اجيرې ادارې د تشکيل څخه خپل رسميت ختم کړی دی چې داوس لپاره د اجيرې ادارې څخه آزادې او داسلامي امارت سره ملحق مدرسې شمېرل کېږي.

(۳) داسلامي امارت د تعليم او تربيې دکميسيون لخوا چې ديني مدارسو لپاره کوم واحد تعليمي نصاب ترتيب او منظور شوی دی دغه نصاب دپکتيکا ولايت ټولو ديني مدرسو ته د تطبيق لپاره رسول شوی دی چې په دې هکله د مدرسو دمهتممينو او استاذانو لخوا هم د اسلامي امارت سره په پوره همکارۍ کولو د نصاب په تطبيق کې موافقه کړې ده.

چې ددوی دهمکارۍ په نتيجه کې دغه نصاب تر ډيرې اندازې پورې عملي شوی دی او دمزيد او مکمل عملي کېدلو لپاره يې هلې ځلې دوام لري، داسلامي امارت د معارف رياست دې موضوع ته پوره متوجه دی.

(۴) په مکتبونو کې د جاري تعليمي نصاب چې د تعليم او تربيې د کميسيون لخوا کومه کره کتنه شوې ده او اصلاحات يې پکې کړي او بيا په (۱۳) ورقو کې ترتيب کړل شوي دي.

دپکتيکاولايت داسلامي امارت د معارف رياست لخوا دغه اصلاحات د اړونده جدولونو سره د يو متحدالمال مکتوب په ذريعه د ولايت اړوند ټولو مکاتبو ته رسول شوي دي د عملي کولو يې ورته هدايات جاري کړي دي د اسلامي امارت د معارف د مديرانو لخوا پخپلو مربوطه ساحو کې د موجودو مکاتبو کلک مراقبت او د دغو اصلاحاتو د تطبيق جدي څارنه کېږي

(۵) د مکاتبو لپاره چې د اسلامي امارت د تعليم او تربيې د کميسيون لخوا د ديني مضامينو کوم تقسيم الاوقات جوړ کړل شوی هغه هم د ولايت ټولو مکاتبو ته توزيع او تکثير شوی دی.

(٦) د مکاتبو او مدارسو د استاذانو لپاره د اسلامي امارت د معارف رياست لخوا لنډ مهالي تربيوي پروګرامونه جوړ شوي دي، ترڅو د ټولو تعليمي ادارو استاذان په ديني روحيه برابروي او په دوی کې مسلکي مهارت پيدا شي.

(۷) د مکاتبو د طالبانو د سيرت او صورت په اسلامي بڼه ساتلو او ددوی لباس د افغاني دُود او دَستُور مطابق برابرولو لپاره کوشش شوی دی، او په دې هکله مناسب اولازم تصاميم نيول شوي او اجراءات ترسره شوي دي چې ډيرې ښې پايلې يې لرلي دي.

(۸) په ټولو تعليمي ادارو کې ددې خبرې اهتمام شوی دی چې که ددې ادارو په اداري او يا تدريسي عمله کې کوم نامطلوب شخص وي چې تثبيت او معلوم کړل شي هغه به د ادارې څخه ويستل کېږي.

(۹) په ټولو تعليمي ادارو کې که مدرسې دي، که دارالحفاظونه او که مکاتب د طالبانو لپاره د مخابروي وسائلو لکه مخابره او يا موبايل تيلفون استعمال ممنوع ګرزول شوی دی، ترڅو په دې سره له يوې خوا د طالبانو قيمتي وختونه د ضائع کېدلو څخه وساتل شي او د بلې خوا دغه وسائل په څه طريقه د اسلامي امارت د معارف او يا نورو جهادي فعاليتونو په خلاف استعمال نکړل شي.

(۱۰) د اسلامي امارت د پکتيکا ولايت د تعليم او تربيې رياست لخوا تعليمي ادارو ته د طالبانو د راجلبولو او داخلولو کوششونه شوې دي او کېږي، همدارنګه په دغو ادارو کې د شاګردانو د حاضرۍ او پابندۍ کولو لپاره هم پوره توجه شوې ده، او په دې هکله د سيمې د خلکو

سره سلا او مشورې شوې دي، د سيمو خلک او د ماشومانو اولياء په دې قانع کړی شوې دي تر څو خپل بچي په تعليمي ادارو کې داخل کړي او بيا يې د روزانه حاضرۍ کولو سره عادي کړي، او دوی يې خپلو مسئوليتونو ته متوجه کړې دي ترڅو په دې طريقه د ولايت د خلکو بچيانو ته علم ورسيږي او څوک د تعليم څخه بې برخې پاتې نه شي.

(۱۱) په ټولو ادارو کې د امتحاناتو د بهير څارنه کيږي تر څو امتحانات په اصولي توګه واخستل شي، په امتحاناتو کې د درغليو او يا بې قاعدګيو مخه ونيول شي او د ټولو طالبانو مشروع حقوق خوندي وساتل شي.

(۱۲) د ثانوي تعليمي ادارو څخه عالي تحصيلاتو ته د طالبانو د معرفي کولو بهير هم د اسلامي امارت د معارف لخوا کنترول کيږي او مراقبت يې کيږي.

د پکتيکا په ولايت کې د يوې مؤسسې په اړه:

د پکتيکا ولايت په ځينو ولسواليو کې د تعليم په برخه کې د سويډن کمېټې په نوم يوه خارجي خيريه مؤسسه هم کارکوي، ددې لپاره چې د افغان غيرتي مجاهد او مظلوم ولس بچي څوک د تعليم په نوم او بهانه د خپل دين او مذهب د صحيح لارې څخه منحرف نه کړي د پکتيکا ولايت د اسلامي امارت د تعليم او تربيې رياست د نوموړې مؤسسې سره رابطې کړې دي او ددغه مؤسسې مسئولين يې په دې قانع کړې دي چې په دې ولايت کې د تعليم په برخه کې کوم کارکوي بايد د اسلامي امارت د معارف رياست په موافقه يې وکړي، دوی ته په دې برخه کې د هيڅ قسم خپل سرفعاليت کولو اجازه نشته.

هماغه وه چې د مؤسسې ادارې د اسلامي امارت د ولايت د تعليم او تربيې رياست سره د يو تړون په کولو سره موافقه وکړه.

چې ددې تړون له مخې په اړونده سيمو کې د تعليم په برخه کې ددې مؤسسې فعاليتونه په دا ډول دي:

(۱) هغه مکاتب چې ددې مؤسسې لخوا تمويليږي مکمل نصاب به يې هغه نصاب وي کوم چې د اسلامي امارت د تعليم او تربيې کميسيون د کلي والي مدرسو لپاره ترتيب او منظور کړی دی.

(۲) ددې مؤسسې لپاره به د مکتب او د مکتب د ځای تعيين د اسلامي امارت د معارف د اړونده مديرانو او د سيمې د نيکو قومي مشرانو لخوا کيږي.

(۳) د مؤسسې مربوط مکاتبو لپاره استاذان به د اسلامي امارت د اړونده مديرانو او قومي نيکو مشرانو لخوا ټاکل کيږي.

(۴) د مؤسسې اړونده مکاتبو د کنترول او بررسي لپاره چې سيمې ته د مؤسسې کوم مشاورين او مفتشين راځي، هغه به د اسلامي امارت د اړونده مديرانو او نظامي مجاهدينو په اجازه سره سيمې ته داخليږي، په غير د اجازې څخه پخپل سر نشي کولی چې سيمې ته راشي او مکاتب بررسي کړي.

که ددې تړون سره له يوې خوا د فساد مخه نيول شوې ده نو د بلې خوا په سيمه کې د اسلامي امارت تعليمي نصاب هم تطبيق کړل شوی دی.

د افغانستان اسلامي امارت د تعليم او تربيې کميسيون هوډ لري او په دې هڅه کې ده چې پکتيکا کې علم او پوهه عامه شي او د هر وګړي د کور تر انګړه علم ورسيږي.

د علم او پوهې په رڼا منور او د تعليم او تربيې په ښکلا ښکلې ديو سوچه آزاد اسلامي هيواد افغانستان په هيله.

د افغانستان اسلامي امارت
د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو کميسيون





# تربیت ایمانی کودکان..... چرا؟

بدون شك جنگی که اکنون امّت با آن مواجه است، به جنگی تمام عیارعلیه اصول ثابت ولایتغیر اسلام تبدیل شده است که اصل دین را هدف ضربه ی خود قرار داده و مقابله با این هجوم خرد کننده، ممکن نیست مگر با داشتن عقیده ای واضح و آشکار و راسخ و ایمانی ثابت وقوی.

کسی که نگاهی به تاریخ بیندازد، به خوبی متوجه می شود که ارتباط مستقیمی بین سلامت دین وعقیده و پیروزی و سربلندی وجود دارد. یعنی زمانی که امّت بر باورهای خود محکم بوده و به آنها اهمّیت داده و از آن حفاظت نموده وگرامیشان داشته است، بر جهانیان برتری یافته و کفه ی ترازوی (عزتش) بالاتر از همه قرار گرفته و هر گاه در بین امّت، سخنان باطل و شطحات و گمراهی رواج یافته، دچار شکست و رنج های گوناگون شده است.

ما در این مقاله از اهمیت تربیت ایمانی نونهالانمان سخن می گوییم، تربیتی که با آن، دینشان را از شبهات گمراه کننده حفظ نماییم و آنان را برای دفاع از آن آماده کنیم. با اینکه اصل این نوشته درباره ی کودکان است، امّا روی سخن ما تنها با پدری نیست که می خواهد فرزندش را تربیت نماید، یا با مادری نیست که روی پرورش آنها کار می کند بلکه روی سخن ما هر پیش نماز(شیخ) مسجدی است که می خواهد شنوندگان خود را بر ایمان تربیت نماید، و هر معلّمی است که در مدرسه با دانش آموزانش سخن می گوید و هر داعی دینی است که مردم را به سوی خداوند فرا می خواند..... به همه آنان عرض می کنیم و می گوییم : اول عقیده، اوّل عقیده .

## چرا کوچکترها؟

به چند دلیل مهم، ما درلزوم تربیت ایمانی و عقیدتی بر کودکان تأکید کرده ایم، که از جمله آنها دلایل زیر را می توان نام برد:

دلیل اول: کودکان، امید فردای ما و همان نسلی هستند که باید حامل پرچم (لا اله الّا الله محمّد رسول الله) باشند. و اگر ما آنان را برای این کار آماده کنیم، پرچم دین را بلند و آن را یاری خواهند کرد و اگر به آنان بی اعتنایی کنیم، آن راضایع کرده و از کف می دهند. همانطورکه بعضی از داعیان گفته اند:" اگر ما خود عیب عمل به احکام دین را داریم، بیایید لا اقل کودکان خود را برای به عمل به آن آماده کنیم".

دوّم : چون کودکی به دلیل وجود آمادگی فطری برای قبول عقیده و باور صحیح، سنگ بنای تکوین و شکل گیری عقیده وایمان و قبول ارزشها و باید و نباید ها است و بنا به فرموده ی پیامبر صلی الله علیه وسلّم که حضرت ابو هریره رضی الله عنه ان را روایت کرده:"کل مولود یولد علی الفطرۀ فأبواه یهودانه أو ینصرانه أو یمجسانه". ثم قرأ أبو هریرۀ: "فطرت الله التی فطر الناس علیها"( هر فرزندی بر فطرت سلیم الهی متولّد می شود، و این پدر و مادر هستند که(سرشت او را تغییر داده) او را به یهودی، مسیحی یا زرتشتی(مجوسی) تبدیل میکنند.) سپس حضرت ابوهریره این آیه را تلاوت فرمود: ("فطرت الله التی فطر الناس علیها)

دلیل سوّم: ارزشها، اصول و عقایدی را که کودك، در دوران کودکیش یاد می گیرد در ذهن او رسوخ کرده، برای بقیه عمر، پابرجا می ماند و تغییر و تبدیل آن بسیار مشکل خواهد بود.

چهارم: رابطه محکم بین عقیده وباور درست و اخلاق والا، و عقیده ی باطل و اخلاق فاسد، و اثر عظیمی که عقیده بر شخصیّت انسان دارد.

## اهمّیت دادن پیامبر صلی الله علیه وسلم به کودکان:

از بزرگترین دلایل اهمیت دادن به کودکان در سنین رشد، این است که می بینم که پیامبر صلی الله علیه وسلم همان طور که به بزرگترها اهمیت می دادند، به کودکان توجه واعتنای بسیار زیادی داشتند، که شاید این مهم به دلیل یادآوری کمتر، یا راهنمایی و تألیفات کمتر در این زمینه، از دید بعضی پنهان مانده باشد .

نکته عجیبی در این باره درمصنّف عبدالرزاق وجود دارد که از حضرت علی رضی الله عنه روایت شده که فرمودند:" من شاهد بودم : وقتی که رسول الله با نصارای(مسیحیان) بنی تغلب صلح می کرد، شرط فرمود که نباید فرزندان خود را مسیحی کنند، و اگر اینکار را بکنند، پیش پیامبر صلی الله علیه وسلم، پیمان شکن به حساب خواهند آمد. " سپس علی رضی الله عنه ادامه داد، اگر فراغت یابم با آنها خواهم جنگید".

در همان کتاب(مصنف) آمده است که:مردانی از تغلب به حضور عمر رضی الله عنه آمدند،عمر رضی الله عنه گفت: شما در جاهلیت سهمی داشتید، حال اسلام بیاورید تا به عنوان مسلمان(در اسلام نیز) سهمی به شما بدهیم. ( به نظر می رسید که اسلام را قبول نکردند) ، حضرت عمر نیز با دو شرط با آنان مصالحه نمود. اول اینکه مبلغ جزیه آنان را دو برابر کند، و دوّم اینکه فرزندان خود را مسیحی نکنند. امام مجاهد رحمه الله نوکری مسیحی داشت و به او می فرمود: ای جریر! مسلمان شو سپس گفت که این سخنی بود که صحابه رضی الله عنهم به نوکران مسیحی خود می گفتند.

در حدیث صحیح در بخاری شریف آمده است که حضرت انس (رضی الله عنه ) می فرماید:" فرزند یك یهودی که خدمت پیامبر صلی الله علیه وسلّم را انجام می داد، مریض شد پیامبر صلّی الله علیه وسلم به عیادتش رفته نزدیك سرش نشست و به او فرمود اسلام بیاور، پسرك نگاهی به پدرش که آنجا بود، انداخت، پدرش گفت سخن ابوالقاسم را اطاعت کن، و آن پسر مسلمان شد. سپس پیامبر صلّی الله علیه وسلم (باخوشحالی ) در حالی از آنجا خارج شد که می فرمود: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِی أَنْقَذَهُ مِنْ النَّارِ(تمام سپاس و ستایش از آن خدایی است که او را از آتش دوزخ نجات داد)(بخاری شریف(در روایت دیگری چنین آمده: پیامبر(صلی الله علیه وسلم) به او گفت: شهادت بده که خدایی جز الله نیست و من (محمد) فرستاده الله هستم! پسرك نگاهی به سوی پدرش انداخت، پدر ساکت بود،او هم چیزی نگفت، برای بار دوم و سوّم هم همین اتفاق افتاد تا اینکه بار سوّم پدرش گفت:آنچه به تو می گوید، انجام بده او نیز همان کرد(یعنی شهادتین را جاری نمود) وفات یافت، یهودیان خواستند او را تشییع جنازه وتکفین کنند امّا پیامبر فرمود: ما از شما به او نزدیکتریم سپس پیامبر(صلوات الله وسلامه علیه) او را شسته و کفن کرد و خوشبو نمود و بر او نماز خواند.

ابوهریره رضی الله عنه وقتی بر کودکان گذر می کرد، گاهی به بعضی از آنان می فرمود:" فرزندم، اگر عیسی ابن مریم (علیه السلام) را دیدی سلام ابوهریره را به او برسان.".. واین رفتار فقط به خاطر این بوده است که در سؤال و دانش را بر کودکان بگشاید تا عقیده ی مسلمانان در باره حضرت عیسی علیه السلام را بیاموزند، و بدانند که ایشان طبق فرمایش رسول الله صلی الله علیه وسلّم به عنوان نشانه ای از نشانه های قیامت در آخر الزمان، به زمین نازل شده، تشریف خواهند آورد. مقصود ما از این نوشته بیان اهتمام نبی کریم صلی الله علیه وسلّم و پیشینیان بزرگوار (امّت) به کاشتن تخم ایمان در دل کودکان وچیزهایی بود که ما نیز باید به آنها اهمّیت بدهیم، امّا کیفیّت وچگونگی و راههای رسیدن به این هدف را انشاءالله در مقاله آینده بیان خواهیم کرد.

برای خود و فرزندانمان از الله توفیق، رشد، هدایت و راستی را مسئلت می نماییم.



# په افغان ناروغانو

# د هندوستان د روغتونونو سوداګرۍ ته تود بازار

هندوستان ته د افغان ناروغانو د ور تلو په اړه د یو راپور په پیل کې وایي:

د ډیلي د جنوب په لاجپات نګر سیمه کې د کاسترو با نیکتین کالونۍ کې چې تر ډیره په کې له ناروغانو سره راغلي افغانان پراته دي جمشید بهر راووت. نوموړی د افغانانو له یوې خوراکه پلورنځي تیر شو او په کوڅه کې وړاندې ولاړ او د کوڅې په دواړو غاړو کې یې افغان درملتونو او د د شپې د تیرولو د ځایونو په دري ژبه لیکل شویو اعلانونه ته کتل. هغه د سړک د غاړې یو افغان نانوایي ته ودرید څو له هغو کسانو چې افغاني جامې یې په تن وې ډوډۍ واخلي. نوموړې تر دې وروسته له ګڼو افغان ریستورانتونو څخه د مزار په نوم یو ریستورانت ته ورغی او یو میز ته کیناست.

جمشید ټوله ورځ د ډیلي په روغتون کې تیر کړې وه چیرې یې چې وړور د مغزو د تومور تر درملنې لاندې دی. نوموړي ټایمز مجلې ته ویلي په افغانستان کې هم لوی روغتونونه شته خو دواګانې یې ډیر کله جعلي وي.

د ډیلي د لاجپات نګر سیمه چې اوس وړوکی کابل بلل کیږي په افغانستان کې د روغتیایي خدمتونو د کړ کیچن وضیعت بیان کوي. په راپور کې وروسته د بې پولې ډاکترانو د هغه وروستي راپور یادونه شوې ده چې په کې د مرکه شویو هر و پنځو ناروغانو څخه یو ور ته ویلي چې د کورنۍ غړي یا نژدې ملګري یې تیر کال روغتیایي اسانتیاوو ته د نه لاس رسي له کبله مړ شوي دي. د افغانستان لپاره د امریکا د بیا رغونې د مرستو د پلټونکې د دفتر (سیګار) هغو راپورونو ته هم اشاره کړې ده چې وایي په افغانستان کې په روغتیایي اسانتیاوو لګیدلې پیسې تر ډیره پر ځای نه دي لګیدلې او په دې لړ کې یې د سالنګ د روغتون یادونه کړې چې د نیم میلون امریکایي ډالرو د لګښت سربیره هم دا او بو، بریښنا او کار کونکو د کموالي له کبله په سمه توګه کار نه کوي.

په افغانستان کې د بې پولې ډاکترانو د ادارې مشر بینیوټ ډي ګریس د ټایم خبریال ته ویلي:

(( ډیر افغانان اوس هم د نا امنیو له کبله ډیره هڅه کوي چې لومړنیو او بیړنیو روغتیایي اسانتیاوو ته لاس رسی پیدا کړي، دوی اوږده مزلونه کوي، ډیرې پیسې ور کوي او دا یو حقیقت دی چې ګڼ روغتیایي مرکزونه په سمه توګه کار نه کوي. ))

د ټایمز راپور وایي په ۲۰۱۳م کال کې هندوستان سفارت ۳۲۲۰۰ دوه دیرش زره دوه سوه ناروغانو ته ویزې ور کړي چې هندوستان ته د درملنې لپاره ولاړ شي. په ۲۰۱۲م کال کې دا شمیر شپږ ویشت نیم زره وو

په هندوستان کې د مکس روغتونونو یو چارواکي اجي بخشي ټایمز مجلې ته ویلي که چیرې په افغانستان کې پر تا د زړه حمله راشي او ډیرې پیسې ولرې نو لندن ته به ځې خو که د منځنۍ طبقې څخه یې بیا به هندوستان ته ځې. د مکس روغتون ته په ۲۰۱۳م کال کې شپږ زره افغان ناروغان د درملنې لپاره ورغلې دي.

ټایم مجله وایي هندوستان ته تللي افغان ناروغانو څخه ډیر کم یې د لګښت د پرې کولو توان لري. د ډیرو لپاره هندوستان ته تګ په دې معنی ده چې یا به کور او ځمکه خرڅوي او یا به په پور او سود پیسې اخلي

# داسې قیصه چې ژړا او د ایمان تازګي پکې نغښتې

حمید افغان

بلال بن ابي رباح رضي الله عنه د نبوي جومات لومړی موذن دی، بلال درسول الله صلی الله علیه وسلم په جومات کې شاوخوا لس کاله اذان کړی دی، ډیرو خلکو ته دبلال په اړه همدومره معلومات شته، کوم معلومات چې له ډیرو خلکو سره نشته هغه داچې بلال درسول الله صلی الله علیه وسلم له وفات وروسته څه شو؟ راځئ نن مې دا معلومات او په دې اړه دبلال دردونکي او ژړه ونکي کیسه درته راوړې ده،

بلال ابوبکر الصدیق رضی الله عنه ته ورغی او ورته کړه یې : ای درسول الله ځای ناستي )خلیفه( ماله رسول الله صلی الله علیه وسلم اوریدلي دي چې ویل یې : دمومن تر ټولو غوره عمل دالله په لاره کې جهاد کول دي، ابوبکر ورته وویل : بلاله ! ته څه غواړې ؟ بلال وویل : مانیت کړی دی چې ترمرګه پوري ژوند په جهاد کې تیر کړم، ابوبکر ورته وویل : موږ ته به اذان څوک کوي .... ؟ دبلال سترګې له اوښکو ډکې شوې او زیاته یې کړه : زه له رسول الله وروسته بل چاته اذان نه کوم، ابوبکر ورته وویل : نه ته به له موږ سره پاته کیږې اوموږ ته به اذان کوې ... بلال وویل : که تازه داسې ازاد کړی یم چې له ازادي وروسته به هم ستاسره یم، بیا به ستاپه خوښه پاته شم او که تازه دخدای له پاره ازاد کړی یم نو ما او هغه ذات سره پرېږده چې دهغه له پاره دي زه ازاد کړی یم.

ابوبکر ورته وویل : بلاله ته مایوائې د الله له پاره ازاد کړی یې . بلال دشام لورته روان شو او هلته په جهاد بوخت شو، دی دځان په اړه وایې : درسول الله صلی الله علیه وسلم له وفات وروسته ماپه مدینه کې داوسیدلو وس نه لاره . ده به چې کله اذان پیل کړ، او د 'أشهد أن محمداً رسول الله' جملې ته به ورسیدی، ستوني به یې غریو بند کړ ... په ژړا به یې پیل وکړ ... نو ځکه شام ته ولاړ مدینه یې پرېښودله ... او ترڅو کلونو پوري داسلام په لښکر کې دیوه سپیڅلي غازي په توګه پاته شو، یو وخت یې رسول الله صلی الله علیه وسلم په خوب ولید خوب ولید، په خوب کې یې بلال ته وویل: بلاله ! دومره جفا ؟!! زموږ لیدو ته نه راځې ؟؟ بلال چې راویښ شو غمونو او دردونو کړاوه اوسمدستي دمدینې په لور روان شو، مدینې په رسیدو درسول الله صلی الله علیه وسلم دقبر مبارک زیارت ته ورغی، دقبر خواته یې په ژړا زړه سپک کړ.

دی لاناست وچې حسن اوحسین رضی الله عنهما ورته راغلل، دواړو په خپل وارپه غیږو کې ونیو اوپه یوه بل مخ ښکل کړ ....او ورته ویې ویل : د سهار اذان به راته کوې، سهار مهال بلال دجومات بام ته وخوت، او دا عرش لړزوونکي کلمات یې پیل کړل : )الله أکبر الله أکبر(. د بلال تکبیر کړیکو مدینه ټوله ولړزوله ... کله یې چې : )أشهد أن لا آله إلا الله( وویلې په مدینه کې رسول الله دمینانو د ژړا کړیکې او ساندې پورته شوې .... او چې : )أشهد أن محمداً رسول الله(. یې وویلې د مدینې ښځې له پردو راووتلې .... په مدینه منوره کې د ژړا او انګولا دومره شور او زوږ جوړ شو چې مخکې هیڅکله دومره نارینه او ښځینه چاپه ژړا نه ولیدلې..

کله چې امیر المؤمنین عمر رضی الله عنه شام ته ولاړ، دشام مسلمانانو ورته وویل چې بلال دې یوائې دیوه لمانځه له پاره اذان راته وکړې، امیر المؤمنین بلال دلمانځه په وخت کې راوغوښت او هیله یې ترې وکړه چې اذان ورته وکړې، بلال پورته شو او اذان یې وکړ، د بلال له خولې چې داذان سپیڅلي کلمات وتل دعمر اوبیا دنورو صحابه کرامو د ژړا کړیکې ورسره غبرګې شوې ناستو صحابه کرامو ټولو ډیر زیات وژړل، فرضي الله تعالي عنهم اجمعین .




## مورچل دې یادوم

الهام الدین قیام

قدم چې چیر ته اخلم پل په پل دې یادوم
د سین غوندې غنګې وهم او تل دې یادوم

ګلشن کنبې که هم ګر ځمه مقصد مې ته بې ، ته بې
بورا دې کړمه مینې ګل په ګل دې یادوم

بیګا مې لید د مینې د وفا اجر په خوب
په خلد کې یم د حورو او در شل دې یادوم

پیوند دې لکه میخ چې په ختګ وهلې کیږي
هر ځل تر پخوا تینګ شي چې هر ځل دې یادوم

وطنه یادوم دې په هر نوم به هر عنوان
فرخار دې یادوم او که کابل دې یادوم

په ذهن کې مې یو یو بهار ریدي شي ګریوه چاک
شهیده چې په وینو سور مورچل دې یادوم

د مخ تر ښکلا ډیر کم نه دی حسن د هنر
پسرلیه » لیونیه په غزل دې یادوم

## د جنګ صحنه کې

حاجي محمد اواب

موږ څو ځله تکرار کړې تجربه د جنګ صحنه کې
توره زموږ د غلیم ملا وې تل کړه د جنګ صحنه کې
پس له مرګه به پاڅیږي ماته خوله او کړه ژامه
چې وهلی مو پر سوک دی څوک په خوله د جنګ صحنه کې
اسلامیت او افغانیت مو په خمیر کې دي اخښلي
ځکه وایو موږ تکبیر او هم ټپه د جنګ صحنه کې
موږ نو هلته خوند پر اخلو موږ نو هلته بیا مستیږو
له کافر سره چې ووهو چمبه د جنګ صحنه کې
داچې ورک دي بې حسابه یرغلګر زموږ صحرا کې
پر دښمن باندې را اوږي داچپه د جنګ صحنه کې
که لویدلي مو ځوانان دي په جګړه کې ملا اوابه
خو لویدلي توغ مو نه دی یوه شیبه د جنګ صحنه کې

## یرغلګر ته !

مسجون انس

پورته دې له شوبلو الوتکو نه لوخړې شوې
هیلې دې ناهیلې دلته ستا لښکرې ستړې شوې
څومره به دې نازکړو په عصري ټیکنالوجۍ باندې
څنګه لوپه شوې څنګه جوړې درته شخړې شوې
ډیر ولې مغروره داشغال ارمان دې زړه کې وو
پرمخې نسکور شوې او په خاورو دې خپرې شوې
هر خوا نه حصارېې له هر خوا درباندې واري دي
وینو باندې سرې دي د هیواد دغرونو تړې شوې
ځانته دې چې سپر ګڼلو ځان دې کې خوندي باله
ختم دې بیسونه او پوستې دې خړې پړې شوې
لنده دا ، نور تښته ګوزاره درته مشکله ده
ګام په ګام مورچې درته ، دوران وطن جونګړې شوې
رځې به سر ټیټې کړه خوله په درست جهان کې اوس
خولې ته دې چې سمې د مسجون سوک او څپړې شوې

# غازي جانانه

عزيزالرحمن حبيبي

له غازي توري دې ځار غازي جانانه
پرې نابود دې کړل کفار غازي جانانه

فرعوني مرۍ دې بيا ورباندې پرې کړې
غرب دې ښه اوري خرپار غازي جانانه

غليم ستا برياوې پټې له جهان کړې
خو ستا توره کړې شرنګهار غازي جانانه

حيدري توره دې کينږدې په ځمکه
کړه پرې مات کفري يلغار غازي جانانه

ستا غيرت او ستا جرأت ته مې سلام دی
تا وحشي اوښ کړو مهار غازي جانانه

له غليم سره جنګ ښه دی له جرګې نه
چې پرې ونه کړې اتبار غازي جانانه

له دې کلک دريځ دې ځار شم مجاهده
ټول طاغوت دې کړو بيمار غازي جانانه

حوصلې يې ماتې شوي دې نور تښتي
يرغلګر کړه را ايسار غازي جانانه

د سپيڅلي لار سپيڅلی لاروې
چې پرېنږدې دغه لار غازي جانانه

حبيبي وايي سر ټيټ نه کړې طاغوت ته
که شي حق باندې په دار غازي جانانه

# ديموكراسي

مشفق حريتمل

چې نظام اوس دهيواد ديموكراسي ده
غلامان دي که پاچا که چپړاسي ده

ننګ غيرت اوس دپرديو ملګرتيا شوه
شروع کړې غيرتيانو جاسوسي ده

دميوند دملالۍ کېسې اوس نشته
کېسه ګرمه د رانۍ او دتولسي ده

دشرابو څښاک اوس دې حال ته راغلی
ته به وايې چې يا ډيوه ده يا پيپسي ده

چې غليم کړې دوطن پېغلې سرتورې
دابېرې نه دی داهسې دوسي ده

هلته ګران وطن داور لمبو کې سوځي
خو له غمه يې بيا دلته بې حسي ده

يرغلګرو ټول وژني شروع کړي
ساور کړې دبابا ترڅنګ لمسي ده

په ځوانانو کې هم هېڅ خوند پاتې نه ده
څوک شو ډم څوک سندرغاړی څوک چرسي ده

تش په نوم باندې پښتون يې پښتون نه يې
هر دويم لفظ دې خوله کې انګليسي ده

رسنۍ هم صليبيت ته په خدمت دي
ازادۍ مشال ډيوه که بې بې سي ده

خيال يې رنګ قلم يې مات ژبه يې ګونګه
چې دکوم قلموال ډمه پاليسي ده

خدای ته ګورئ تقدس دقلم ساتئ
دا پيغام هر قلموال ته خصوصي ده

هسې وخت ضايع کوي نه په سندرو
دمشفق هره خبره اساسي ده



د بنـديانو د تنظيم او خلاصـون د چـارو کمېـسيون محتـرم مـسئول حاجي عبدالله خان :

# د هېواد په ۳۴ زندانونو او ۲۲۲ توقيف ځايونو کې له ۳۰ زرو زيات کسان بنديان دي

د مجلې درنو لوستونکو داځل مو د اسلامي امارت له مسئولينو سره د مرکو په لړ کې د بنديانو چارو کمېسيون له محترم مسئول سره مرکه کړې هیله ده د خوښې وړ مو وګرځي :

د بنـديانو د تنظيم او خلاصـون د چـارو کمېـسيون محتـرم مـسئول حاجي عبدالله خان چې د طالبانو د اسلامي تحريک د پيل سره يو ځاي يې په جهادي ليکو کې خدمت پيل کړی او دافغانستان د اسلامي امارت په مهمو نظامي او اداري برخو کې يې په لوړو پوستونو کې خدمتونه تر سره کړيدی ؛ له څه کم دريو کلونو راهيسې د بنديانو چارو کمېسيون عمومي مسئوليت پر غاړه لري ، له نوموړي سره مو دخپل اړوند کميسيون دچارو دڅرنګوالي په اړه مرکه کړې چې ستاسو توجه ور ته راجلبوو .

**پوښتنه** : محترم حاجي صاحب ! له هر څه وړاندې در ته هر کلی وايو ! کـه دلومړۍ پوښـتني پـه شـکل دبنـديانو چارو کميـسيون پـه اړه معلومات راکړئ؛ څومره تشکيلات لري او په کومو برخو کې خدمت کوي ؟

**جـــــواب** : : حامداً مصلياً ! له ټولو څخه مخکې د فرهنګي کمېسيون له محترمو مسئولينو څخه يوه نړۍ مننه کوم چې درنو هيواد والـو تـه د اسلامي امـارت لـه مـسئولينو سره د مرکو لـه لاري د اسلامي امارت د اداري جوړښتونو ، دهغوي د فعاليتونو او د ګران هيواد دحالاتو په اړه معلومات وړاندي کوي ، ستاسو د پوښتني په ځواب کي بايد ووايم

چي ددښمنانو پـه لاس کي دېر تو مسلمانو بنديانو دراخلاصون موضوع داسلامي شريعت لـه نظره يوه لـه مهمو مسائلو څخه ده ، دامت جمهور علماء او مجتهدين په دې نظر دي چي دمسلمانو بنديانو راخلاصول په نورو مسلمانانو باندي کفايي واجب دي.

دا فتوا دعـامو بنديانو پـه اړه ده ، کـه چېـري بنديان دحـق دلاري مجاهدين وي او بيـا د امريکايي کفري غاصب ښکيلاک غوندي دجابر دښمن په زندانونو کي شپې سبا کوي ، دراخلاصولومسئله يې نوره هم مهمه او ضروري بلل کېږي.

دهمـدې ضرورت پـه اساس دافغانستان اسلامي امـارت پـه تيرو کلونو کي دمظلومو بنديانو دنجات لپاره له مختلفو پوځي او نا پوځي لارو څخه استفاده کړې او ډلې ډلې بنديان يې ددښمن له لاس څخه ازاد کړي دي ، پـه دې برخـه کـې يـې دخپلـو اسيـر و مجاهـدو وروڼـو کـوم چـي دامريکاپه مشرۍ داشغالګرواو دکابل غلامي اداري په داخلي او خارجي بنديخانو کي پر اته دي دحقوقو درعايت په خاطر مستقل کميسيون جوړ کـړی دی ، تر څـو پـه ښـه طريقـه سـره دبنـديانو دراخلاصـولواوخدمت مکلفيت مخته يوسي، بايـد ووايو چي د بنديانو چارو کمېسيون لپاره د اسـلامي امـارت محتـرم مـشر تابه يـوه لائحـه تر تيـب کـړې چـي ددغـه کمېـسيون د تـشکيلاتو پـه اړه بـه عمده معلومات لـه همدې لائحې څخه ستاسو حضور ته وړاندي کړم :

نوموړې اداره په خپل چوکاټ کې د ریاست مقام، معاونیت او څلور څانګې لري :داداري او ثبت و سجل څانګه ، د تحقیق او تفتیش څانګه، دعمومي ارتباطاتو څانګه او د کاري واحدونو څانګه ، اوس په لنډ ډول د هرې ادارې دندې او واکونه بیانوو :

د ریاست مقام: د ریاست مقام د بندیانو کمېسیون عمومي مسئولیت پرغاړه لري او مهمې دندې یې دخپلې ادارې د تشکیل ترتیب ، د کمیسیون دشورى مشر توب ، دمشر تابه په اجازه په ټولوهغومجالسو کې چې دبندیانو دستونزو دحل کولو په هکله په ملي یانړیواله سطحه صورت نیسي او دشر کت چانس ولري شر کت کول ، له ټولو هغو ملي یانړیوالو ادارو او اشخاصو سره د مشر تابه په هدایت لیدل چې دبندیانو په رابطه کار کوي او دخپلوادارو د کار اوفعالیت، سرِې چارو او دبودیجې له سم لګښت نه څارنه اونظارت دی ، همداډول دمشر تابه په هدایت له اسلامي امارت سره ددښمن د خارجي او داخلي بندیانو تبادله کول د ریاست مقام په مهمو صلاحیتونو کې راځي.

معاونیت : د بندیانو چارو کمېسیون د نورو امارتي کمېسیونونو په شان دوې کاري ساحې لري ؛ جنوب لویدیځ زون او شرقي زون، که چیرې د کمیسیون عمومي رئیس په شرقي زون کې وي د کمیسیون د معاون کاري ساحه جنوب لویدیځه حوزه ده او که عمومي رئیس په جنوب لویدیځ زون کې وي د معاون کاري ساحه یې شرقي زون ده ، د بندیانو چارو کمېسیون معاون د عمومي مسئول په مشوره او هدایت په خپل طرف کې د ټولو هغو کارونو سرپرستي کوي کوم چې عمومي مسئول یې مسئولیت لري .

داداري او ثبت و سجل څانګه : دغه اداره د کمېسیون د ټولو اداري چارو مسئولیت پر غاړه لري او کاري برخې یې دمالي اومحاسبې مدیریت ، دثبت وسجل مدیریت ، دمحبوسینو دعریضو د آرشیف سمبالول او دمحبوسینو احصائیه ده ، همداډول ددغې ادارې په مسئولیتونو کې د کمېسیون د شورى لپاره د اجنډا، ځاي او وخت ټاکنه او هره میاشت د خپلو ټولو حسابونو تصفیه او ریاست مقام ته یې سپارل شمېرل کېږي .

د تحقیق او تفتیش څانګه : دغه اداره دبندیانو ددوسیو د پلټلو او د خلاصون لپاره یې د ټولو ممکنه لارو چارو د سنجولو تر څنګ یو شمېر نور مهم مسئولیتونه هم لري چې دهغو د جملې څخه دداسې پرسونل استخدامول دي چې مسلکي پوهه ولري یعني یاحقوق دانان یامدافع وکیلان وي یا اقلاً داسې خلک وي چې دجرمونو په ډولونو کې بلد او جرم وپېژني، سیاسي ، جنایي او مافیایي قضیې یوله بل سره بېلولاي شي.

دغه څانګه د دښمن د بندیانو دوسیې هم څېړي چې له مجاهدینو سره پر تې وي که خارجي ، سیاسي یا مهم نظامي اشخاص وي او یا په اړبکي ملیشو کې د نفوذ خاوندان وي دغه اداره یې د تبادلې او نورو اړوندو چارو طرز العملونه ترتیبوي او ریاست مقام ته یې سپاري.

د عمومي ارتباطاتو څانګه : دغه اداره د کورنیو او نړیوالو اړیکو په برخه کې د بندیانو اړوند اړیکي سمبالوي ، د کورنیو اړیکو په برخه کې د هیواد له ټولو زندانونو سره فعالې اړیکې لري او د نړیوالو اړیکو په برخه کې دامارت دسیاسي پالیسیو په چوکاټ کې دټولوهغونړیوالو خیریه ادارو سره چې دبندیانوسره دخوراکې، البسې او ادویې په برخه کې مرسته کوي مفاهمه کوي او مرستې یې راجلبوي او همدا شان دټولوهغوسازمانونوسره چې دبندیانوددوسیوپه اړه په هیواد کې کار کوي مخامخ یا بالواسطه ځان پوه کوي اودخپلو ستونزو په هکله خبر ور کوي ، ددې تر څنګ دغه اداره دبشر دحقوقو، سره صلیب او نورو ملي اونړیوالوسازمانونوهغه اعلامیې او راپورونه چې دسیاسي او عسکري اسیرانو په باب خپرې شوې وي او یا خپرېږي وخت پر وخت ترلاسه کوي او هغه سرغړونې چې له پور ته اعلامیواوقوانینوڅخه دهیواد په داخل یاسیمه ایزوبندیخانو کې زموږ له بندیانو سره تر سره کیږي په ګوته کوي او که لازمه وه په اړه یې د امارت دمطبوعاتو له لارې دنشراتي پالیسۍ په چوکاټ کې د کمیسیون دریاست دمقام په هدایت رسمي درېځ روښانه کوي .

د کاري واحدونو څانګه : د کاري واحدونو په څانګه کې موږ د ټول هیواد په کچه ولایتي مسئولین لرو چې هر مسئول د خپل اړوند ولایت د بندیانو چارې سمبالوي ، د ولایتي مسئولینو مهمې دندې دادي : د ثبت وسجل څانګې ته د نوي بندي شوي کس پوره معلومات ور کول ، د تحقیق او تفتیش اداري هغه لاربښوونې بندیانو ته رسول چې دهغوی دوسیې ور سره بدلېدای، کمېدای او نهایي کېدای شي ، د داسې کمیشنکارانو پیداکول چې قاضیانو، څارنوالانو، استخباراتي او نورو اړوندو چارواکو ته دبندیانوپایوازان رهبري کړي او همداډول د خپل

اړوند ولایت د بندیانو له ستونزو ځان خبرول او اړوندو مراجعو ته یې ستونزې او مشکلات رسول.

**پوښتنه** : همدا اوس په افغانستان کې دبندیانو او زندانونو وضعیت څرنګه ارزوئ، ستاسو دمعلوماتو له مخې څومره افغانان ددښمن په زندانونو کې موجود دي؟

**جواب** : د افغانستان په زندانونو کې د بندیانو وضعیت له پخوا څخه ډېر ناوړه دی او روزمره له زندانونو څخه د بندیانو د ډول ډول کړاونو احوال راتلل دا څر ګندوي چې د ګوډاګي رژیم وحشي عسکر نه له اسلامیته خبر دي او نه انسانیت پېژني، څه موده مخکې د فاریاب ولایت په مرکزي زندان کې بندیانو د پولیسو د ناوړه چلند دمخنیوي په موخه سوله ایز اعتصاب وکړ او چې کله مطبوعاتو ددوي داعتصاب خبر خپور کړ د زندان مدیر وغوښتل چې یوشمېر بندیان سخت مجازات او کوټه قلف کړي مګر بندیانو ورسره مقاومت وکړ او دوي همداسي تږي ولاړل، ددغې ورځې په سبا سهار کې کله چې بندیان د سهار له لمانځه وروسته د زندان په مسجد کې د قرانکریم په تلاوت مصروف وه وحشي قوماندان له خپلو عسکرو سره یو ځای پر مسجد حمله وکړه او د بندیانو په کشولو یې پیل وکړ، کله چې بندیانو مقاومت وکړ دغه بېدینه د قرانکریم مبارکي نسخې له مسجده دباندې وغورځولې او د مبارکو احادیثو کتابونه یې څیري کړل، بندیانو ددوي ددغه عمل په لیدلو نور هم مقاومت سخت کړ او یو شمېر عسکر یې ټپیان کړل، ټپیانو عسکرو د نورو په مرسته لومړی بندیان خپلو کوټو ته پر شا کړل او بیا یې د دوي په مخ کې د قرانکریم مبارکو نسخو ته اور واچاوه، له بندیانو سره ددغه ظلم ټول جریان زموږ سره صوتي ثبت دی، له مظلومو بندیانو سره د فاسد او ظالم رژیم وحشي چلند او بې ساري ظلمونه هغه څه دي چې غرب او په اصطلاح ملګرو ملتونو یې لا هم په پټولو کې زغم ونښوای کړای او د تېر کال په جنوري کې یې له بندیانو سره ددوي له غیر انساني چلند او ظلمونو څخه پرده پورته کړه، د یوناما په خپاره شوي راپور کې په پوره تفصیل سره هغه څوارلس ډوله شکنجې او تعذیبونه له شواهدوسره یوځای بیان شویوه چې مظلوم بندیان هره ورځ د افغانستان په زندانونو او توقیف ځایونو کې ورسره مخامخ دي، تاسو به هم خبر یاست چې بېلابېلو کورنیو او نړیوالو مطبوعاتو وخت ناوخته له کلک سانسور سره سره د افغانستان د زندانونو وضعیت د اندېښنې وړ بللي چې بنه بېلګه یې د ازادۍ راډیو هغه راپور دی چې په تېره جنوري میاشت کې خپور سو او د پلچرخي زندان د ناوړه شرایطو په اړه یې تفصیلي معلومات وړاندي کړل، په راپور کي ویل سویوه چې ددغه زندان چاپیریال په صحي توګه د بندیانو لپاره د هستوګني وړ ندی.

د زندانونو ناوړه چاپیریال، د زندان د ساتونکو ظالمانه چلند او نور بېلابېل سخت شرایط ددې سبب سوي چې بندیان له سخت مجبوریته په اعتصاب لاس پوري کړي او تاسوبه هم خبریاست چې مطبوعاتو د هیواد له اکثرو زندانونو د داډول لسګونو اعتصابونو خبر ور کړیدی.

د بندیانوچارو کمېسیون د خپل مسئولیت له مخې وخت په وخت ددښمن د ناروا کړنو او ظلمونو په وړاندې توند غبر ګونونه ښودلي او ددوي ظلم او وحشت یې په ډاګه کړیدی.

د بندیانو د شمېر په اړه باید ووایم چې د هیواد په ۳۴ زندانونو او ۲۲۲ توقیف خانو کي له ۳۰ زرو زیات کسان بندیان دي.

زموږ د معلوماتو له مخې دغه بندیان په دریو ګټګوریو وېشل سوي چې ځیني د جنایي جرمونو په تور، ځیني د طالبانو په تور او ځیني نور بیا له طالبانو سره د همکارۍ په تور بندیان سویدي.

**پوښتنه** : په تیرو څو کلونو کې د بندیانو کمیسیون دمهمو فعالیتونو په اړه که معلومات راکړئ چې په کومو برخو کي یي کوم فعالیتونه ترسره کړي دي؟

**جواب** : د بندیانو چارو کمېسیون فعالیتونه ټول مهم دي ځکه د یوه مظلوم بندي سره هر ډول مرسته د ټولو مسلمانانو لپاره اهمیت لري او د بندیانو چارو کمېسیون چې دهمدې خدمت لپاره د اسلامي امارت د مهربان مشر تابه په هدایت رامنځته سوي د بندیانو د خدمت په اړه هر ډول فعالیت ورته مهم برېښي او تر خپله وسه یې دا خدمت کړی هم دی، د بندیانو چارو کمېسیون د مهمو فعالیتونو په اړه معلومات غواړم په لاندي څو برخو کي در ته وړاندي کړم:

الف – اداري نظم: څرنګه چې د هري اداري پرمختګ او بریالیتوب په اداري نظم او نسق پوري تړلی دی په همدې منظور مو د بندیانو چارو کمېسیون اداري جوړښت په ډېر ښه نظم ترتیب کړی دی، د هرولایت لپاره

مسئول خپل میاشتني فعالیتونه اداري څانگې ته سپاري، اداري څانگه د ولایتي مسئولینو د معلوماتو پر بنسټ د ټولو بندیانو کره شمېره د ثبت او سجل د څانگې له لارې ثبتوي او همداړول د تحقیق او تفتیش څانگه د بندیانو د ستونزو او له هغوی سره د اړینو مرستو د کنټرول او تنظیم په برخه کې څېړنې کوي او نتایج د ریاست مقام ته سپاري.

ب – داړیکو برخه : د بندیانو چارو کمېسیون له مهمو فعالیتونو څخه یوه د عامه اړیکو برخه هم ده چې ټولي اړوندي اړیکي سمبالوي، دغه څانگه د هیواد له ټولو زندانونو سره فعالي اړیکي لري او د هر بندي له ستونزو ځان خبروي او بیا یې اړوندي مرجع ته رسوي، دغه څانگه د بندیانو د ستونزو په اړه له نړیوالو ازادو بشري ادارو سره هم اړیکي لري او وخت په وخت ور سره پر اړوند موضوعات خبري کوي.

ج – د بندیانو او ددوي له کورنیو سره هر اړخیزي مرستي : د بندیانو چارو کمېسیون د خپل مسئولیت له مخي له بندیانو سره ددوي د خلاصون په برخه کې بېلابېلي مرستي کوي چې دا مرستي له بندیانو سره ددوي د محاکمو په جریان کې تر سره کېږي چې د خپلي پالیسۍ له مخي یې پوره جزئیات نه سو په ډاگه کولای، د بېوزله او بې سرپرسته بندیانو حال مو وخت په وخت اخیستی او تر خپله وسه مو یې لاسنیوی کړیدی، همداړول مو د بېوزله بندیانو له کورنیو سره د خپل وس مطابق مرسته کړې او پر حال مو یې پوښتنه کړېده.

د – روغتیایي مرسته : د بندیانو چارو کمېسیون د عمومي ارتباطاتو د څانگې په مټ د بندیانو له روغتیایي ستونزو ځان خبروي او د مرستي په موخه یې په افغانستان کې د سره صلیب نړیوالي اداري ته ور پېژني، که په کوم زندان کې د سره صلیب ډاکټران ونشي کړلاي تر څو له ناروغ بندي سره مرسته وکړي نو بیا د بندیانو چارو کمېسیون له نورو لارو ددغه بندي سره مرسته کوي تر څو روغتیایي ستونزي یې حل سي.

هـ – د بندیانو تاریخ : تاسو پوهېږئ چې د امریکایي یرغل له پیل سره یو ځای د امریکایي وحشیانو او ددوي دملگرو او غلامانو لخوا د مظلومو هیوادوالو داسارت لړۍ هم په خورا تېزۍ سره پیل سول او اوس هم دوام لري چې د اسارت په دوران دغه مظلوم بندیان له ډېرو سختو حالاتو، وحشتونو او ظلمونو سره مخ سویدي، د بندیانو کمېسیون و پتېیله تر څو د بندیانو د خپلو ستر گو لیدلي حالات او ددوي د بند د شپو ور ځو قصې د تاریخ په پاڼو کې ثبت کړي تر څو راتلونکي نسلونه د خپلو اسلافو له قربانیو او تاریخ نه خبر وي، د بندیانو د حالاتو راټولولو طریقه داسي جوړه سوې چې هر بندي ته د خپلو حالاتو او مشاهداتو د لیکلو لپاره ځانگړې کتابچه ور کول کېږي او له لیکلو وروسته یې بیر ته ترې تسلیموي، دغه معلومات به بیا ان شاء الله د کتاب په شکل خپرېږي.

د بندیانو چارو کمېسیون د پور تنیو فعالیتونو تر څنگ په روزمره توگه د بندیانو په اړه د نړیوالو اعلامیې، داخلي او خارجي خپروني او معلومات څاري او د ضرورت په وخت کې د اسلامي امارت د پالیسۍ مطابق غبر گون ښیي.

**پوښتنه** : له اولسي خلکو او مطبوعاتو داسي راپورونه تر لاسه شوي چې مزدور رژیم په ځینو سیمو کې شخصي زندانونه لري؛ آیا تاسو داسي شواهد موندلي چې د شخصي زندانونو په اړه معلومات ولري؟

**جواب** : هو! د کابل رژیم تر واک لاندي ولسوالیو کې عموماً هر قوماندان یو شخصي زندان لري او د خپل مزاج مطابق یې قوانین ور ته ټاکلي؛ که څوک وژني، بندي کوي یې او یا یې خوشي کوي ټول دده اختیار دی مگر د یو شمېر وحشي قوماندانانو پټ زندانونه، وحشي ظلمونه او د بېگناه بندیانو ډله ایزه شهادتونه داسي څه دي چې اوس د ټول اولس خوله پر خوله کېږي، د دغو وحشي قوماندانانو څخه یو هم د کندهار امنیه قوماندان عبدالرازق دی چې د وحشت څېره یې ټول اولس ته ښکاره ده، ځیني بندیان چې دده له پټ زندان نه د لکهاوو افغانیو په بدل کې راخوشي سوي دده د وحشت داسي واقعې بیانوي چې قلم یې له لیکلو عاجزه کېږي، د کندهار په رېگ کې د بندیانو ډله ایز شهادتونه اوس داسي عام سوي چې ټول خلک پرې خبر دي او موږ هم څوځله دده دا کړني د مطبوعاتو له لاري له شواهدو سره خپري کړیدي.

**پوښتنه** : د کابل رژیم او امریکایان دعوه کوي چې دوی د بشري حقوقو نړیوالو قوانینو ته التزام لري او په همدې اساس یې بندیانو ته ټول بشري حقوق ور کړي دي، آیا ددښمن دغه دعوا پر ځای ده؟

**جواب** : ددښمن دغه دعوه مطلق حقیقت نلري او یوازي ددوي پوچ تبلیغات دي، پدې اړه باید ووایو چې د بندیانو د اسارت په موضوع کې دوه طرفه ښکېل دي؛ یو طرف خارجي یرغلگر دي چې په سر کې یې امریکایان قرار لري او بل طرف ددوي غلامان دي.

که امریکایان دادعوه کوي چې دوي بندیانو ته خپل بشري حقوق ور کړي نو دوي دي د گوانتنامو او بگرام زندانونو په اړه توضیحات ور کړي چې دغو مظلومو بندیانو ته یې کوم ډول حقوق ور کړي ؟ آیا د ددغو دوو زندانو مظلوم بندیان له دیارلسو کالو راهیسي همداسي بې برخلیکه نه دي پاتي ؟ که دغلته بندیانود خپلو حقه حقوقو د ترلاسه کولو لپاره په اعتصاب لاس پوري کړی آیا په میاشتو میاشتو همداسي نه دي پرېښودل سوي ؟ او بالآخره یې یا مرگ ته رسولي او یا یې په زور اعتصاب ور مات کړی .

د مزدور رژیم په زندانونو کي د روان حالت په اړه باید ووایم چي بندیان په نهایت سختو شرایطو کي ژوند کوي او له ډېرو اولنیو اسانتیاوو بې برخي دي ، په زندانونو کي د روغتیایي خدماتو د نه شتون ، د بندیانو د هستوگني د ځایونو تنگوالی ، ډېر ځله پر تعلیم او زده کړي د محدودیت په هدف بیلابیلي پلمي ، زندان ته د پولیسو لخوا د نشه اي توکو قاچاق او بیا بندیان په نشه اي توکو روږدي کول ، د سیاسي او جنايي بندیانو په یو ځای کولو سره د هغوی تر منځ د شخړو را پیداکول او داسي نور هغه واقعات دي چي د بندیانو کمېسیون یې هروخت له زندانونو راپورونه ترلاسه کوي ، د پورتنیو ستونزو په اړه زموږ معلومات د گوډاگي رژیم اړوندو ډېرو مطبوعاتو هم خپاره کړي چي د بندیانو چارو کمېسیون د اسنادو په ډول په ارشیف کي ساتلي دي.

**پوښتنه** : همد اوس دبگرام زندان او گوانتانامو زندانونو دبندولو په اړه په مطبوعاتو کي خبري کیږي بارک اوباما واک ته له رسیدو وړاندي ویلي وو چي گوانتانامو به تړي ، آیا ددښمن لخوا ددغو زندانونو دبندولو خبره واقعي ده او که یوازې تبلیغاتي استفاده ترې کوي ؟

**جواب** : دامریکا او د متحدینو غربي هیوادونو چارواکو یې د ددوه مخي منافق سیاست له مخي تل خپل اولسونه په بیلابیلو طریقو غولولي او په دې ډول یې خپل واکونه غځولي دي، تاسو ټول په دې پوهیږي چي د مهاجمو هیوادونو مطلق اکثریت اولسونه د خپلو نظامونو له یرغلیزي پالیسۍ سره سخت په ټکر کي دي او همیشه یې له خپلو چارواکو غوښتنه کړې چي نور د افغانستان ناروا یرغل ته د پای ټکي کښېږدي او خپل عسکر او پیسې نور په دغه بې هدفه او نه گټونکي جگړه کي ضایع نکړي، د امریکایي اولس د نورو غوښتنو تر څنگ یوه یې د گوانتنامو زندان تړل او امریکا نور ددغه زندان په وجهه له شرمه خلاصول دي، دغه غوښتنه د بوش په وخت کي هم وه او وروسته هم ، د اوباما په دوهم ځلي ټاکل کېدو کي مهمه ونډه له افغانستانه د امریکایي ځواکونو د ژر راایستلو او گوانتنامو زندان د تړلو وعدو درلوده، اوباما له خپل اولس سره د دغه زندان د تړلو وعده وکړه او اولس هم رایي ور کړې مگر تاسو وینی چي د کلونو په تیریدو سره نه اوباما او نه یې هم حکومت دغه زندان وتاړه او تر اوسه پوري په نړیواله کچه د بشري حقوقو د سرغړونو دیوه لوي مرکزي زندان په توگه خلاص دی. دا چي اوباما اوس بیا ددې زندان د تړلو دهڅو اعلان کړی موږ ور ته د شک په ستر گه گورو او واقعي تړل یې هله شوني بولو چي امریکایي ځواکونه په بشپړي ماتي له هیواده پښي سپکي کړي .

**پوښتنه** : محترم حاجي صاحب د گوډاگي رژیم قضایي ارگانونه بندیان په اعدام او اوږدمهاله حبس محکوموي آیا بندیانو ته ددوي دغه ډول سزاوي ټاکل له نړیوالو عدلي او قضایي قوانینو سره برابري دي ؟

**جواب** : نه ! ددوي دغه ډول سزاوي ټاکل له هیڅ ډول نړیوالو عدلي او قضایي قوانینو سره برابري ندي ، هغه عدلي او قضایي قوانین چي نړیوالو د جزاء د قوانینو په شکل وضع کړي او ټولو کفري او دیموکراتیکو هیوادونو منلي او د کابل اوسنی گوډاگی رژیم هم ور ته ځان ژمن بولي د رژیم په هیڅ ارگان کي ندي عملي سوي بلکه ټولي فیصلي او سزاوي یې د رشوت پر معیار ولاړي دي ، که کوم متهم کس قضایي ارگان ته پیسې ور کړي هغه بري کېږي که څه هم ددوي دقوانینو له مخي مجرم وي او که چا پیسې نه درلودې هغه ته به یا اعدام او یا اوږدمهال بند ور کول کېږي که څه هم ددوي په قوانینو کي بېگناه وي، له اوسني رژیم څخه دا توقع کول چي یوه ډېره کوچنۍ فیصله دي هم د اسلامي قوانینو مطابق وکړي محاله ده او د بندیانو په باب کي خپلو منل سوو قوانینو ته هم هیڅ ډول اعتناء نه کوي ، تاسو خبر یاست چي تېر کال د کابل وحشي چارواکو د کرزي په امضاء شپږ تنه مجاهدین چي ټول د سیاسي فعالیت په تور نیول سویوه اعدام کړل ، زموږ سره هغه سند سته چي د کرزي د اداره امور له لاري رسنیو ته لیږل سویوو او ددغو شپږو تنو جرمونه پکښي بیان سویوه ، په دغه سند کي دوي په خپله لیکلي چي فلاني له طالبانو سره تړاو درلود ، د سیاسي بندیانو اعدام داسي مسئله ده چي د رژیم بادار امریکایې هم په خپل هیواد کي منع کوي او هلته غیر قانوني ده ، د محاکمو په جریان کي بندیانو ته سزا

ټاکل له يوه مخې د ديني تعصب او کفر خوشاله کولو په مقصد تر سره کېږي ، د محاکمو په جريان کې بنديانو ته خپله د رژيم د قوانينو خلاف سزا ور کولو ډېر شواهد او اسناد را سره موجود دي چې د خبرو د اوږدوالي له امله يوازې يو سند تاسو ته وړاندې کوم :

د کندهار ولايت مقام رسمي انټرنيټ پاڼې د تېرې مارچ مياشتې پر ۱۸ نېټه د نورو بنديانو د محاکمې تر څنګ د دريو تنو سياسي بنديانو د سزا په اړه هم يادونه کړې ، د دغه خبر د ښه توثيق لپاره د دوي لخوا خپور سوي خبر تاسو ته وړاندې کوم (دغه راز په ياده علني محاکمه کې درو تنو ته د ۵ کاله بند او اعدام سزا واورول سوه. نقيب الله، نوراحمد او رفيع الله د احمدجان نومي کس په ترور تورن دي. موظف څارنوال وويل، يادو کسانو په کندهار کې د احمدجان په نوم يو کس ترور کړی، چې تر څه وخت وروسته د پوليسو له لوري ياد کسان نيول سوي دي.

د دوی مدافع وکيل وويل: "نوراحمد چې د ښوونځي زده کوونکی دی، عمر يې هم کم دی، نقيب الله او رفيع الله له مدارسو څخه پوليسو بېولي دي، له دوی سره هېڅ ډول اسلحه نه ده نيول سوې، دوی د پوليسو له لوري د وهلو په صورت کې اعتراف کړی او له ډاکټرانو څخه اسناد لري چې دوی وهل سوي دي."

خو د مقتول مدافعينو ياد کسان مجرمين ګڼل او هغوی ته يې له محکمې څخه د سزا غوښتنه کوله. قاضي عبدالحليم مسلم ياد کسان په پنځه کاله بند او اعدام محکوم کړل.) د دغه خبر تشريح ته ضرورت نسته تاسو خپله فکر پکښې وکړی چې سزا څه ډول او د کومو شواهدو پر بنا ور کول سويده .

**پوښتنه** : دبنديانو کورنيو او وارثينو ته ستاسو پيغام څه دی او داسلامي امارت په نمايندګۍ ور ته څه ويل غواړئ ؟

**جواب** : دبنديانو کورنيو او وارثينو ته مو پيغام دادی چې د خپلو دوستانو په بندي کېدلو سره به هيڅکله دا فکر نکوی چې موږ دوی هير کړيدي ، اسلامي امارت ټول بنديان ورونه د خپل وجود قدرمنه برخه بولي او په خپل ټول توان سره يې د خلاصون لپاره د هر ډول ممکني لارې څخه کار اخلي خو د اسلامي امارت د پوره توجه سره سره بيا هم بنديان ستاسو د کورنيو غړي دي او ستاسو پوښتنې او شفقت ته ضرورت لري ، تاسو له دوی سره په خپل مهربانه چلند او ددوی له اولادو سره په خواخوږۍ په زندان کې ددوي مورال لوړ وساتئ او پوره حوصله افزايي يې وکړئ، الله تعالي دې موږ او تاسو ټولو ته د خپلو ګرانو بنديانو ورڼو د خدمت او ددوي د خلاصون په لاره کې د نېکو هڅو توفيق را نصيب کړي.

**پوښتنه** : دبنديانو د موضوع په اړه عامو مسلمانانو ته ستاسو پيغام څه دی ؟

**جواب** : عامو مسلمانانو ته هغه که افغانان دي يا غير افغانان ؛ داسلامي امت د کورنۍ غړي دي ، زموږ پيغام ور ته دا دی چې دنبي عليه الصلوة والسلام د قول په استناد چې ټول مسلمانان يو تن او وجود دي بايد يو مسلمان د بل مسلمان درد د خپل درد وبولي او په غم يې غمجن سي ، کوم بنديان چې په افغانستان کې د کفارو او دهغوی دملګرو په زندانونو کې بنديان دي دوی د کومې شخصي دعوا يا دنيوي مقصد له امله نه دي بنديان شوي ، بلکې داسلام په ننګ او د اسلامي نظام د ګټلو په جګړه کې دغه سختې ور ته رسيدلې ده .

څرنګه چې مسلمانان ټول ديوې ديني کورنۍ غړي او سره وروڼه يو ، بايد ددوی درد او مصيبت حس کړو ، ددوی مشکل خپل مشکل وبولو ، او د خپل وس مطابق ور سره همکاري وکړو .

بنديان وروڼه چې زموږ دمشترک دين په دفاع کې محبوس شوي دي ؛ په موږ د احق لري چې د احوال پوښتنه يې وکړو او په را خلاصولو کې ور سره هر نوعه همکاري چې مو په وس وي ويې نه سپموو دغه راز ګڼ شمير بنديانو ترشا بې سرپرسته کورنۍ او ماشومان پرې ايښي ددوی د پاللو لپاره بايد له اسلامي امارت سره مرسته وکړو تر څو له لزوم ديد سره سم دغه مرستې د بنديانو په ضروريا تو ولګيږي .

ـ محترم حاجي صاحب ! له تاسو يوه نړۍ مننه چې د خپلو ټولو مصروفيتونو سره سره مو موږ ته وخت راکړ او مرکه مو را سره وکړه.

حاجي صاحب :

له تاسو هم مننه ، الله تعالي دي تاسو او ټولو مجاهدينو ورڼو ته د ښه خدمت مزيد توفيق او لوي اجر در کړي .



# دزلزلو حقیقت او د پېښېدو وجوهات یې




(مفتي شاهد حقاني)

لـه بـده مرغـه چـې دتیـرو درې لـسیزو فزیکـي او سایکالوژیکي ستونزو دزغملو سربیره زمونږ وطنوال دا ځل بیا دویر په ټغر کښیناستل اود خپلو نا اهلو او عاقبت نه سنجونکیو مسلطو مشرانو دبي غورۍ اوبې التفاتۍ په غشو یـې ځیګرونـه سوري سوري شول ، د لال ،زمرد او لاجوردو د تـاریخي بدخشان ولایت د( ارګو ) ولسوالۍ په (اب خـشک اواب باریـک )کلیـو کـې د غـره اوځمکـې د ښویېدو لـه کبله د( ۳۰۰ )کورنیو تـر( ۳۰۰۰ )زیات غـرې مړه شوي او تر ځلور زره زیات خلک بېځایه شوي، ددې پېښې څخه یوه شپه وړاندې د سمنګان ولایت په روی و دوآب او خرم و سارباغ ولسوالیو کې د سېل راتلو لـه کبله لږ تر لږه ۴تنـه مړه شوي او پـه سلګونو نـور د کورنو پرېښودو تـه اړ شوي وو او له دې وړاندې په ځینو نورو شمالي ولایاتو کې هم ورتـه پېښې ترسره شوې وې، خو دبدخشان فاجعه هغه غمیزه ده، چې لـه املـه یـې مـونږ تـه ډېر روحیاتي صدمه ورسیده او لـه خوښیو یـې څـه لیـرې کړو ،یـوې خواتـه دې وروسـتیو کـې دبدخشان دمسلمانو مجاهدینو اومبارزینو فتوحات چې له اسلام او جهاد سره یې ددې ولایت دخلکو هوډ تازه کړ او بل لورې تـه دکلیو دنړیدو دا تراژیدي چې غومې یې له ویره ځیګ کړل ،دتقابل تضاد هغه دواړه پلې دي ،چې سرې لومړی دخوشحالۍ او بیا دویر غولې ته بوځي ،او په مجموع کې له اسلامي امارت سره دبدخشانیانو دبې کچې مینې او مذهبي ریښې پیوندونه خو بالکل هیښونکې پدیده ده.

خو دکابـل دچارواکیو او هغـو پـه اصطلاح دمخکښو کاندیـدانو پـه مخونـو بـه څـه پـاتې وي ،چې دبدخشان او بدخشاني ولس پر سر بریت تاووي او دشنو غربي ډالرو په منځ کې دډول ډول پلمو په جوړلو لاهم ځان ددې زلزلـه ځپلیو دمرستو نه معذور بولي ،هلته بدخشانیان په خاورو کې رغړې ، دلته کابل کې واکمن په شراب وکباب خمونه سره کوي اود پـاریس لـه ترکو سره دتخیـل مزې ځغلوي

..............

### د بدخشان ولایت جغرافیه

بدخشان د افغانستان په شمال ختیځ کې پروت دی ، چې لـه ګاونـډیو هېوادونـو سره پولـه هـم لـري، شمال تـه یـې تاجکستان، په ختیځ کې یې یوه څنډه د چین له جمهوریت، ختیځ او سویل ته له کشمیر سره پوله لري په سوېل او جنوب کې د لغمان، کاپیسا او تخار ولایتونو سره نښتی دی.

د اوبو او هوا له مخې بدخشان سوړ او به ټول هیوادکی ډیر شهرت لری. لوړې څوکې لري ،چې له واورو ډکې وي.

هغه ژوی چې (مارکوپولو ) وموند او بیا یې وروسته دا ژوی هم ( مارکوپولو ) ونوماوه، همدلته موندل شوی دی. د بدخشان مرکز فیض اباد دی. کشم، جرم، شهدا ،بهارک، یفتل، خاش، زیباک، درواز، واخان، اشکاشم، راغ او شهر بزرگ یې د لویو ولسوالیو بلل شوی دي ، د بدخشان ولایت زیات خلک با سواده او فرهنګي دي. ځینې خلک اوس د بدخشان د اداري واحدونو شمېر زیات ښيي، بدخشان د پستې ځنګلونه لري، تر څنګ یې د څېړۍ، نمنځو، او سرو ځنګلونه هم لري. د بدخشان لال، زمرد ، او سپنه، سلفر او لاجورد په نړۍ کې ډېر شهرت لري.

د بدخشان مساحت ۵۷۴۰۳ کیلو متره مربع دی، چې زیاته برخه یې غرنۍ سیمې جوړوي، په (۱۳۵۹ل )کال کې د سرشمېرنې له مخې د خلکو شمېر( ۸۷۲۵۰۰ )ښودل شوی، چې بیا په( ۱۳۷۹ )کې یې شمېر (۱۱۳۴۵۰۰)ته لوړ شوی دی ،د نړیوال بانک د راحصائي له مخې، اوس په بدخشان کې (۱۲۲۵۱۲۵ ) کسان ژوند کوي .

## دبدخشان تاریخي اهمیت

د سیمې او افغانستان په لرغوني تاریخ کې د ( وربښمو لویې لارې ) چې د لرې ختیځ (چین.. )او اروپا تر منځ د افغانستان د ځینو سیمو په زړه کې ماتې شوې وې ، ډېرې مشهورې وې.یو له دغو سیمو څخه بدخشان هم وو ،چې د ، ،ګرېکوبوديک ، ،ښونځي اغېزې یې له افغانستان نه بهر د منځنۍ آسیا هېوادونو ، ختن، کاشغر(کاسفر)، سنګیانګ او چین پورې رسولې وې. دغو سیمو ته د رسېدو لاره د بدخشان له زړه نه تېره شوې وه. چینایي څېړونکو ددغو سیمو په تېره د بدخشان د لرغونتوب په اړه په بېلا بېلو مهالونو کې څېړنې برسېره کړي دي ، له زېږد نه دوه پېړۍ (۲ق م ) د مخه چیني لرغونپوهانو د افغانستان مشهور ولایت بدخشان ( Is-Nag-Ling ) په بڼه کښلی دی او د زېږدي په پنځمه او شپږمه پېړۍ کې له تخار سره یو ځای یې د بدخشان د نامه یادونه هم کړي ده...ځینې څېړونکي بیا آریانا ویجه د بدخشان پخوانی نوم بولي. د چین مشهور تاریخپوه او جغرافیه کښونکی (هیوان څنګ) چې د اریانا (افغانستان) ډېرې برخې یې لیدلي دي او بیا یې خپلې لیدنې او کتنې کره کړې دي، نو په دغه لړ کې بدخشان یې د(-Po-To-Chang No)په بڼه لیکلی دی ،

په( ۱۸۹۲ )کال کې ددوو لویو امپراتوریو (روسیه او بریتانیا ) بدخشان په دوه برخو وویشه ، یوه برخه یې د روسیې د بدخشان په نوم ،چې وروسته پخپله دا سیمه د شوروي بدخشان مرکزیت شهر خاروغ له روسیې سره ملحق شو او دوهمه برخه بدخشان، چې فیض‌آبادیې مرکز و د افغانستان له امارت سره وتړل شو ، روسیه او انګلیس دآمو سیند (جیحون) یو طبعي پوله وپېژندله او د سرحد نښې یې پرې نصب کړې.




ځمکه ښوییدل او ترې سلګونه خلک لاندې کېدل یوه دردناکه غمیزه وي ،کله ددې لامل بارانونه کله زلزلې او کله نوروي ،خودلته به مونږدزلزلې په لاملونو څه رڼا واچوو !

## دزلزلې په باب دساینس پوهانو نظر

لزله ولې او څنګه رامنځته کیږي؟

پدې هکله انجنیر ملکزی او محمد ابوبکر ستوری خپلو مقالو وایې چې:د زلزله یوه طبیعي پیښه ده چې دځمکې قشردحرکاتوپه پایله کې رامنځ ته کیږي اوبالاخره دځمکې سرته رسیږي. زلزله هغه طبیعي افت دی چې د

ځمکې د لړزش په واسطه منځ ته راځي. پخوا به د ایټالی او یونان پوهانو فکر کاوه چې د ځمکې په مخ وچې په اوبو کې لکه د بېړۍ غوندې لمبيږي، څنګه چې بېړۍ په اوبو کې د پخوا هغه خوا ځنګيږي، همدا رنګه ځمکه هم چې ددې په وجه زلزله منځ ته راځي. بعضو به دا فکر کاوه، چې زلزله د سوړو او غارونو څخه منځ ته راځي. جاپانيانو فکر کاوه، چې زلزله هغه وخت منځ ته راځي، کله چې ښامار (کوم چې دوی پرې عقيده لري) په قهر شي نو د خولې څخه يې اور اوځي او ځمکه په لړزش راولي. د ۲۰ قرن په شروع کې کله چې د الفريد واګنېر له خوا نه تيکتونيکی تختو نظريه وپېژندل شوه، د زلزلې د منځ ته راتلو علت باند سرې پوه شو.

هغه نقطه چې زلزله لومړی ورڅخه پيليږي د ايپي سينټر او دويم مرکزيې چې د ځمکې سرته رسيږي دهايپوسنټر په نامه ياديږي، هر څومره چې د زلزلې مرکز د ځمکې سطحې ته نږدې وي، په هماغه اندازه يې شدت هم زيات وي .داچې زلزله ولې او څنګه رامنځ ته کيږي په دې اړه پوهان بيلابيل نظريات لري چې له دې ډلې درې مهم يې دپام وړ دي؛

**. ۱تکتونيکي زلزله**
**. ۲ولکانيکي زلزله**
**. ۳دځمکې لاندې ګودالونه**

.۱تکتونيکي زلزله: لکه څنګه چې پوهيږو ځمکه له درې برخو څخه جوړه ده چې پاسنۍ برخه يې دقشر دويمه برخه يې دمنټل او منځنۍ برخه يې دهستې په نامه ياديږي. دځمکې له مخ نه چې هرڅومره دهستې خواته نژدې کيږو دتودوخې درجه لوړيږي (په هر سل متره کې درې سانتي ګريډ درجې ) ځکه خو دمنټل پاسنۍ برخه کې مواد په پلازما ډول شتون لري چې دې ډول موادو ته مګما هم ويل کيږي، مګما تل يو ډول حرکت چې کانويکشن (لکه چې اوبه په ديګ کې ايشيږي ) نوميږي ترسره کوي چې ددغه حرکت په پايله کې دځمکې قشر پليټونه (دځمکې دقشر لويې او وړې کټلې دي، دځمکې قشر نژدې له ۹ لويو او۱۲ کوچنيو پليټونو څخه جوړ دی ) يودبل څخه ليرې (Divergent) اويا يوبل سره نژدې (Convergent) کيږي. په کومه سيمه کې چې نوموړي پليټونه يوبل سره نژدې اويا ليرې کيږي نو په هماغه سيمه کې دځمکې حرکات دزلزلې دڅپو په بڼه خپريږي.

**. ۲ولکانيکي زلزله**: په نړۍ کې داورغورځوني له اړخه ډيرې فعاله سيمې شته چې ځينې وختونه داورغورځوني فعاليتونه يکې رامنځ ته کيږي ، څنګه چې مګما يا ويلې شوې ډيرې د ځمکې سطحې ته په ډير فشار سره راوړل کيږي چې ددې فشار په پايله کې زلزله رامنځ ته کيږي .

**. ۳دځمکې لاندې ګودالونه**: ځنيې وختونه داسې هم پيښيږي چې دځمکې لاندې طبقې له کاربوناتي موادو لکه کلسيم کاربونيت څخه جوړې شوې وي چې نوموړي ډبرې په اوبو کې د حل کيدو ډيره ليوالتيا لري چې وروسته له يو څه وخت څخه په اوبو کې حل کيږي اوداوبو په واسطه يوبل ځای ته ليږدول کيږي چې لومړنی ځای يې ديوه ګودال په شکل خالي پاتې کيږي اودپورتنيو طبقو دفشارله امله يبا سقوط کوي چې په پايله کې يې زلزله رامنځ ته کيږي .

دا چې په افغانستان کې د زلزلې د پيښيدو لامل څه دی په دې اړه ډيرې څيړنې شوې، د څيړنو په ترځ کې څرګنده شوې چې په افغانستان کې زلزله تکتونيکي بڼه لري، په دې مانا چې افغانستان په يوه داسې جيولوجيکي سيمه کې پروت دی چې د دريو لويو پليټونو د شمال له لوري د اوراسيا پليټ د لويديځ لوري د عرب پليټ او د جنوب او ختيځ له لوري د هند پليټ تر فشار لاندې دی او د دې درې پليټونو د اتصال نقطه د افغانستان په شمال ختيځه برخه د هندوکش په غرونو کې پرته ده او وخت ناوخته دا پليټونه يوبل سره نژدې کيږي او د زلزلو لامل ګرځي.

تر اوسه پوهان په دې نه دي بريالي شوي چې د زلزلې د پيښيدو وړاندوينه وکړي ځکه خو د زياتو تلفاتو لامل ګرځي ولې نوې څيړنې ښيي چې د زلزلې له پيښيدو نه مخکې د ځمکې لاندې ډبرې ماتيږي او د اوزون په نامه يو ګاز خپروي

چې د اوزون پیژندونکي آلې په واسطه پیژندل کیدای شي، په شکمنو سیمو کې د دې ډول آلو د نصب په واسطه چې له یوه مرکزي سیستم سره تړل شوي وي د دې شونتیا شته چې د زلزلې وړاندوینه وشي.

دا د خدای ج د خلقت او طبیعیت ته د ورسپارل شوي قانون پر بنیاد را منځته کیدونکي پیښې دي. شاید پدې پیښو کې خدای ج خپل هیبت انسانانو ته څرګندوي او یا دا چې دا طبیعي پیښې بې لدې چې د خدای ج د رحمت او یا هیبت پیغام ولري د خپل قانون سره سم رامنځه کیږي.

ځمکپوهان پدې باور دي چې: د ځمکې مرکزي برخه (زړه) د اور په څیر ګرم او ټول شته مواد (فلزات او نور) په خوړین او مذاب ډول پکې پراته دي، دوی دا وضعیت د تاریخ په بیلابیلو پړاوونو کې تر دې رسوي چې وايي، یو وخت د ځمکې کره ټوله سور اور وه. د ځمکې په سړیدو سره د ځمکې بهرنی پوټکی کلک شو او ورپسې یې لاندینۍ برخې هم ورو ورو سړیدې او کلکیدې تر دې چې نننۍ ځمکه ترې جوړه شوه .دا یو منل شوې نظریه هم ده.

د ځمکې د سړیدو په بیلابیلو پړاوونو کې د ځمکې مخ چملک کیدو، دغه چملکوالی ددې سبب شو، چې د ځمکې د مخ پوټکی درزونه وکړي، چې پدې توګه د ځمکې د پوټکي هرې برخې ته د زلزلې انجینران یا هم ځمکپوهان پلیټ یا ټکټونیک پلیټ وايي .دغه پلیټونه تر نننه پورې خوځیږي، یو د بل څخه لیرې کیږي او یا یو بل ته ورنږدې کیږي او یا هم یو د بل سره سولیږي، چې ددغه حرکتونو څخه د نړۍ په بیلابیلو برخو کې مختلف ډول زلزلې رامنځته کیږي، لکه اندونیزیا، جاپان، ترکیه، امریکا او نور.په ځینو ځایونو کې خو د ځمکې پر سر د غرونو راختل یا راښنه کیدل هم زلزله پیښوي چې زموږ د هیواد د سلیمان د غره زلزلې یې ښه بیلګه ده. د سلیمان غر د نویو غرونو څخه یو دی.

## په اسلامي شریعت کې دزلزلې دپیښیدو وجوهات.

**وأخرج الترمذي عن أبي هريرة قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "إذا اتخذ الفيء دولا والأمانة مغنما والزكاة مغرما وتعلم العلم لغير الدين وأطاع الرجل امرأته وعق أمه وأدنيص -٣٨٩- ... صديقه وأقصى أباه وظهرت الأصوات في المساجد وساد القبيلة فاسدهم وكان زعيم القوم أرذلهم وأكرم الرجل مخافة شره وظهرت القينات والمعازف وشربت الخمور ولعن آخر هذه الأمة أولها. فليرتقبوا عند ذلك ريحا حمراء وزلزلة وخسفا ومسخا وقذفا وآيات تتابع كنظام لآلئ قطع سلكه فتتابع "(الفتاوى الكبرى الفقهية على مذهب الامام/ج٢/ص٢٩٧)**

ترجمه:جامع ترمذي له حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روایت نقل کوي، چې هغه وایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :کله چې مال فئ خپل دولت وشمیرل شي ،امانت غنیمت وګڼل شي ،زکات ورکول تاوان وبلل شي ،دعلم زده کړه ددین نه په غیر کیږي (ددنیوي مال او عهدې لپاره وي) ،سړی دخپلې ښځې اطاعت کوي ،مور یې پرېښې وي ،ملګری ځانته را نږدې کوي او پلار لیرې کوي ،په جوماتونوکې اوازونه پورته شي ،دقبیلې مشر کوم فاسد سړی غوره شي ،دقوم ملک ، مشر او زعیم تر ټولو رذیل شخص شي،دیو چا قدر او عزت دهغه له ویرې څخه کیږي ، ډمې او دموسقیت او لهو لعب الات کونکي څرګند شي ،شراب وڅښل شي ،ددې امت وروستنو په اولنیو باندې لعنت ووایه ،نودوئ دې دسره باد ، زلزلې ،خسف ،مسخ ،قذف او نور آیاتونو یا دقیامت دنورونښو انتظار وکړي، چې داسې به پرله پسې راځي لکه په یوه تار کې پییل شوي مرغلرې چې تاریې وشلیږي او پرله پسې یوپه بل پسې راتوییږي.

**وأخرج الترمذي أيضا عن ابن عباس رضي الله عنهما قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "إذا فشا في هذه الأمة خمسة يحل بها خمس إذا أكل الربا كانت الزلزلة والخسف " وصح أنه صلى الله عليه وسلم قال: "جعل الله عذاب أمتي في الدنيا القتل والزلازل والفتن ". وأخرج ابن أبي الدنيا حديث:**

**"سيكون في أمتي خسف ورجف وقردة وخنازير" وأخرج ابن السكن حديث: "يكون في أمتي رجفة يهلك فيها زهاء عشرة آلاف أو أكثر من ذلك، يجعلها الله عظة للمتقين ورحمة للمؤمنين وعذابا على الكافرين"**

**(الفتاوى الكبرى الفقهية على مذهب الإمام/ج٢/ص٢٩٧)**

ترجمه: ترمذي شريف د حضرت عبد الله بن عباس رضى الله عنه څخه روايت کوي، چې هغه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: کله چې پدې امت کې پنځه کارونه خرګند او علني شول، پنځه عذابه به پرې نازليږي، کله چې سود خوري پيل شوه، زلزلې او خسف به پيل شي، او په صحيح روايت کې راغلي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي چې زما دامت عذاب الله جل جلاله په دنيا کې وژني



، زلزلې او فتنې ګرځولې، دابن ابي الدنيا په يوه حديث کې راغلي چې نږدې ده، چې زما امت کې، به خسف، زلزلې، بيوزګاني کيدل او خنزيران کيدل وي، دابن سکن په يوه حديث کې راغلي، چې زما په امت کې به زلزله وي، چې لس زره زها ءبه پرې هلاک شي او يا به تردې هم زيات وي، الله جل جلاله به يې د پرهيزګارانو لپاره وعظ، مومنانو ته رحمت او کافرانو ته عذاب وګرځوي

همداسې د حضرت عايشې رضى الله تعالى عنها نه روايت راغلى چې فرمايي: وذكر ابن أبي الدنيا عن أنس ابن مالک أنه دخل على عائشة، هو ورجل آخر، فقال لها الرجل: يا أم المؤمنين حدثينا عن الزلزلة؛ فقالت: إذا استباحوا الزنى وشربوا الخمر، وضربوا بالمعازف، غار الله عز وجل في سمائه، فقال للأرض: تزلزلي بهم، فإن تابوا ونزعوا، وإلا هدمتها عليهم؛ قال: يا أم المؤمنين: أعذابا لهم؟ قالت: بل رحمة للمؤمنين، ونكالا وسخطا على الكافرين. (الدرالسنية فى كتب النجدية /ج٢١/ص٥٩) المكتبة الشاملة.

ژباړه: ابن ابي الدنيا د حضرت عايشې رضى الله تعالى عنها څخه د حضرت انس بن مالک رضى الله تعالى روايت نقل کړى چې: دا فرمايې چې زه او يو بل کس ام المؤمنين حضرت عايشه رض ته ورغلو، نو دې بل سړي له حضرت عايشې رضى الله تعالى عنها څخه وپوښتل، چې يا د مومنانو مور! د زلزلې په باب راته حديث بيان کړه! هغې ورته وفرمايل چې کله خلک زنا مباح وګڼي، شراب وڅښي او د موسيقۍ الات وغږوي، نو الله جل جلاله ته اسمان کې غصه او غيرت ورشي، نو ځمکې ته ووايي چې پدې خلکو وخوځيږه او زلزله پرې وکړه، که دا خلک توبه وباسي، او دا ګناه پريږدي، له هلاکت نه بچ شي، که نه نو راويې نړوي پرې، او يکې له منځه لاړ شي، دې سړي ترې بيا وپوښتل، چې يا ام المؤمنين! آيا دا زلزله عذاب دى دوئ ته؟ هغې ورته وويل چې نه، بلکې مومنانو ته رحمت او په کافرانو عذاب او عقوبت دى.

وفي مناقب عمر، عند ابن أبي الدنيا: أن الأرض تزلزلت على عهد عمر، فضرب بيده عليها، فقال: ما لک؟ أما إنها لو كانت القيامة، حدثت أخبارها، سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: إذا كان يوم القيامة، فليس فيها ذراع، ولا شبر، إلا وهو ينطق وقال كعب: إنما تزلزلت الأرض إذا عمل فيها بالمعاصي، فترعد فزعا من الرب جل جلاله أن يطلع عليها.

(الدرالسنية فى كتب النجدية /ج٢١/ص٥٩) المكتبة الشاملة

ژباړه: د حضرت عمر رضى الله عنه په مناقبو کې هغه چې ابن ابي الدنيا رانقل کړي، داسې راځي چې دده په دور خلافت کې زلزله وشوه، نو ده پرې لاس کښيښود او ورته يې

وويل چې ځنګه لړزيږي؟که چيرته دا قيامت وي نو اخبار دې بيان کړه !ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه اوريدلي دي ،چې فرمايل به يې چې کله قيامت شي نو نه به پدې کې يو ګز وي او نه يوه لويشت ،مګر خبرې به کوي.او کعب فرمايي چې کله ځمکه باندې ګناهونه وشي نو درب العالمين له ويرې ځکه ولړزيږي چې هغه ج به پرې خبر شي !

## دزلزلې حقيقت

**أما حقيقة الزلزلة فهو ما أخرجه أبو الشيخ في العظمة وابن أبي الدنيا في كتاب العقوبات عن ابن عباس رضي الله عنهما قال: خلق الله جبلا يقال له ق محيط بالعالم وعروقه إلى الصخرة التي عليها الأرض فإذا أراد الله أن يزلزل قرية أمر ذلك الجبل فحرك العرق الذي يلي تلك القرية فيزلزلها ويحركها فمن ثم تحرك القرية دون القرية وأخرج الخطيب وابن عساكر عنه قال: جبل ق محيط بالدنيا وقد أنبت الله منه الجبال وشبك بعضها ببعض بعروقه كالشجرة كالأوتاد فإذا أراد الله أن يزلزل أرضا أوحى إلى ق فحرك العرق وأخرج عبد بن حميد عن عكرمة أن ذا القرنين لما بلغ الجبل الذي يقال له ق ناداه ملك فقال ذو القرنين ما هذا الجبل قال هذا جبل يقال له ق وهو أم الجبال والجبال كلها من عروقه فإذا أراد الله أن يزلزل قرية حرك منه عرقا.**

**(الفتاوى الكبرى الفقهية على مذهب الامام/ج٢/ص٢٩٧)**

ترجمه:ابو الشيخ په العظمت کتاب او ابن ابي الدنيا په العقوبات کې دحضرت عبدالله بن عباس رضى الله عنه څخه روايت نقل کوي، چې هغه فرمايي: الله جل جلاله د(ق)په نوم نړۍ کې يو غر پيدا کړی ،هغه چې په ټوله نړۍ محيط او ريښې يې له هغې تيرې سره لګيدلې، چې ځمکه پرې نصب ده،کله چې الله په يوه کلي دزلزلې اراده وکړي ،نو دې غره ته حکم وکړي ،نو دا غر هغه رګونه يا ريښې وخوځوي، چې دې ته نږدې دي ،نو زلزله پرې راشي او متحرک شي ،او خطيب او ابن عساکردده څخه نقل کړي ،چې ده فرمايلي چې:د (ق) غر ددنيا څخه راتاو دی ،او الله جل جلاله ددې ق غره نور غرونه راپيدا کړي او ځيني يې په ځينو نورو کې داسې ورننه ايستي لکه ونه او ميخونه ،نو کله چې الله جل جلاله په ځمکه کې دزلزلې اراده وکړي، نو دې غره ته وحی يا امر وکړي ،نو دا غر خپل رګونه او ريښې په غورځنګ راولي ،همداسې عبد بن حميد دعکرمه څخه روايت کوي ،چې کله ذوالقرنين هغه غره ته ورسيد چې هغې ته(ق) وايې ،نو ملايک ورته غږ وکړ، نو ذوالقرنين ترې وپوښتل چې دا کوم غر دی ؟نو ملا يکې ورته وويل چې دې ته جبل ق وايي او ام الجبال دی، ټول غرونه ددې غره څخه ټوکيدلي دي ،کله چې الله جل جلا له دکوم کلي دزلزلې اراده وکړي، ددې غره رګ او غځيدلې ريښې وخوځوي.

او دطبراني په روايت کې دا سې راغلي چې:

**ما أخرجه الطبراني عن ابن عباس ما معناه أن الله إذا أراد أن يخوف عباده أبدى عن شيء من آثار قدرته للأرض فعند ذلک تزلزلت** ، ابن عباس رضى الله عنه فرمايي چې معنى يې داسې راځي ،چې په تحقيق سره چې کله الله جل جلاله اراده وکړي ،ترڅو خپل بندګان وويروي ،دخپل قدرت څه نښې ځمکې ته را ښکاره کړي ،نو دې سره زلزله رامنځته شي ،همداسې (المنذري )په خپل سند کې دابن جريج څخه يو اوږد روايت رانقل کړی ، چې صحت يې نه وي شوی راوړل يې مناسب ندې ،خو دحضرت عبدالله بن عباس رض دفوق الذکر روايتونو څخه دوه خبرې معلومې شوې ،يودا چې زلزله د(ق)دغره څخه پيليږي اوبله دا چې الله جل جلاله ځمکې ته دخپل قدرت اثار ښکاره کوي ،نو زلزله منځته راشي ،دا دواړه روايتونه که صحيح شي ،نو تطبيق يې هم شونی دی او کوم تعارض سره نلري ،داټول دزلزلې اسباب او علل کيدای شي ،خوداټول په يوناني حکماوو او نوي ساينس په ځينو برخو باندې صريح رد دی ،چې له بده مرغه چې هغوئ دزلزلې اسباب هغه بخارات او غازات بولي ،چې دلمر له امله دځمکې په تل کې جمع شوي وي اودځمکې دسختوالي يا صلبت په وجه له ځمکې نشي وتلای، نو نه يې برودت مقاوم کيدای شي چې دا اوبه يا مايع کړي ،او نه داسې ډير حرارت






تحت الارض وي ،چې حل يې کړي ،نو دډيروالي له وجه پرې ځمکه وچوي او زلزله رامنځته شي......ځکه نني تحقيقات وايي دځمکې لاندې ښه ډير حرارت شته او همدا دعبدالله بن عباس روايتونه ددې ډول فلسفيانه څيړنو ترديد کوي ،بلکې دا په ډاګه کوي چې اصلا دا ټول دالله جل جلاله په حکم باندې کيږي او ځمکې بخارات پکې رول نلري !

## دزلزلې نه دتيښتې په باب دفقهاوو نظر

دا مسئله ډيره پيښيږي اوزيات وخت ورسره هرزوړ راو بې زړه شخص مخامخ کيږي ،هغه دا چې څوک کومه ودانۍ يا کوټه کې دننه ناست وي او زلزله شي ، نو خلک دکوټې دلويدو او زلزلې له ويرې له کوټې نه تښتي ،نو غوره مو دا وبلله، چې دزلزلې دبحث په صدد کې پردې موضوع هم لنډه غونډې رڼا واچوو !

خپله يوه مشاهده به ورسره همغاړه کړم او هغه داسې چې ،مونږ په هغه کال چې (۱۹۹۴ز) به وو ،د جامعه دارالعلوم حقانيه دوره حديث کې دوخت دبزګوار او منل شوي عالم شخصيت ،هغه چې اوس مومنځ کې نشته، حضرت مفتي محمد فريد رحمه الله تعالی سره په غالب ګمان دترمذي شريف درس کې ناست وو ،چې ناڅاپه دزلزلې ټکانونه پيل شول ،ومو کتل چې په ډيره بې‌صبرۍ سره ځينې طالبان له دارالحديث څخه ووتل او حضرت مفتي صيب نورالله مرقده او ور سره څه طالبان پاتې دارالحديث کې پاتې شول ،خو دزلزلې جټکه دومره اوږده نشوه ،طالبان چې بيرته راننه شول ، ګوري چې دا لويه هستې لا هم پرخپل ځای ناسته ده، نو څه دخجالت سره مخ شول ،دمګړۍ حضرت مفتي رحمه الله وويل، چې دا هيڅ خبره نده ،له زلزلې نه تيښته رواده او دې کې کوم ډول کراهت يا خجالت نشته، نود ادی د مقتضی الحال سره سم مو دا فقهي جزئيه هم ستاسو کتونکيو مخکې کښيښودە ،تر څو پرې توضيح مقام وشي !

شرعي مسئله داده ،چې که څوک کوټه کې وي او زلزله شي، نو دکوټې څخه تيښته جايز ده،الدرالمختار للحفصکي ) ليکلي چې دې منډه کې کراهت نشته، بلکې مستحق يې دی، دا وايې چې نبي عليه السلام هم دداسې يوه

ديوال ځخه په تيزۍ يا منډه تير شوی و ، چې لويدوته يې ميلان درلود ، ددې فتاوی عبارت په لاندې ډول دی:

**(أخذته الزلزلة في بيته ففر إلى الفضاء لا يكره ) بل يستحق لفرار النبي (ص ) عن الحائط المائل (وإذا خرج من بلدة بها الطاعون: فإن علم أن كل شئ بقدر الله تعالى فلا بأس بأن يخرج ويدخل، وإن كان عنده أنه لو خرج نجا ولو دخل ابتلي به كره له ذلك ) فلا يدخل ولا يخرج صيانة لاعتقاده، وعليه حمل النهي في الحديث الشريف.**

**مجمع الفتاوى (الدر المختار للحفصكي )**

**الشَرح ( قَوْلُهُ وَإِذَا خَرَجَ مِنَ بَلْدَة بِهَا الطّاعُونُ ) الْمُنَاسِبُ زِيَادَةُ أَوَ دَخَلَ لِيُنَاسِبَ مَا بَعْدَهُ ط (ردالمحتار)**

## دزلزلي پروخت نفل لمونځ كول

حضرت عبدالله بن عباس او حضرت عبدالله بن مسعودرضی الله عنهما ددواړو صحابوو به دا معمول و ،چې كله به زلزله يا كوم بل هول يا اسماني مصيبت راغی، نو دوئ به لمونځ كاوه ،نو ځكه زمونږحضرت امام ابوحنيفه رح هم دا ښه او مستحسن ګڼلې ده ،بلكې هر كار چې پكې مصيبت او فزع وي ،لكه سخت باد راشي ، زلزله وي ،سخته ږلۍ ووري ،توپاني باران وي ،ډير ظلمت يا تياره يا داسې بل كوم آفت وي نو مستحب داده، چې لمونځ پكې وشي او ددفع دعا پكې له الله جل جلاله ځخه وغوښتل شي ،لكه په لاندې حواله كې چې دا مسئله راغلې ده

**وكان مالك والشافعي لا يريان الصلاة عند الزلزلة ولا عند الظلمة والريح الشديد**

**ورآها جماعة من أهل العلم منهم أحمد وإسحاق وأبو ثور وروي عن بن عباس أنه صلى في الزلزلة**

**وقال بن مسعود إذا سمعتم هادا من السماء فافزعوا إلى الصلاة وقال أبو حنيفة من فعل فقد أحسن ومن لا فلا حرج**

**قال أبو عمر لم يأت عن النبي من وجه صحيح أن الزلزلة كانت في عصره ولا صحت عنه فيها سنة وقد كانت أول ما كانت في الإسلام على عهد عمر فأنكرها وقال أحدثتم والله لئن عادت لأخرجن من بين أظهركمرواه بن عيينة عن عبيد الله بن عمر عن نافع عن صفية قالت زلزلت المدينة على عهد عمر حتى اصطكت السور فقام فحمد الله وأثنى عليه ثم قال ما أسرع ما أحدثتم والله لئن عادت لأخرجن من بين أظهركم**

**(الاستذكار الجامع لمذاهب فقهاء الامصار )**

---

أثر ابن عباس رضي الله عنهما: «أنه صلى في الزلزلة بالبصرة، فأطال القنوت، ثم ركع، ثم رفع رأسه، فأطال القنوت، ثم ركع، ثم رفع رأسه فأطال القنوت، ثم ركع، فسجد ، ثم صلى الثانية كذلك فصارت صلاته ست ركعات وأربع سجدات، وقال: هكذا صلاة الآيات».

أخرجه عبد الرزاق (٤٩٢٩ ) ؛ وابن أبي شيبة (٤٧٢/٢ ) ؛ والبيهقي (٣٤٣/٣ ) وقال: «هو عن ابن عباس ثابت».

ماخذونه :**جامع صحيح الترمذي ،عبدالرزاق ،ابن ابي شيبة ،البيهقي ، الطبراني .**

**الفتاوى الكبرى الفقهية على مذهب الإمام /**

**(الاستذكار الجامع لمذاهب فقهاء الامصار )**

الدر المختار لعلامة الحفصكي رح.
الرد المحتار لابن عابدين شامي رح
(الدر السنية فى كتب النجدية.
المكتبة الشاملة.
ويكيپېډيا .
ګوګل نړيوال جال.
انټرنيټي ويب سايټونه.



کشور اسلامی در سال اول هجرت، در مدینه تاسیس یافت شمارهٔ مسلمانان، در آن روز، ازدها فزون نبود وحدود کشورشان از دروازهٔ مدینه نمی گذشت چون هرچه بیرون مدینه بود به دشمنان اسلام تعلق داشت وهرکس غیرازیاران پیغمبرصلی الله علیه وسلم دشمن اسلام شمرده می شد ولی رفته رفته حدود این کشوراسلامی تانواحی مدینه وسعت یافت.

در آن روزها مرکز فرمانروائی ودادگستری مسلمانان، مسجد ویاخانه پیغمبرصلی لله علیه وسلم ویاخانهٔ یکی ازیاران پیغمبرصلی الله علیه وسلم بود تاآنکه مسلمانان درسال چهارم هجری سرزمین بنی نضیررا باین کشورکوچک اسلامی اضافه کردند.

سپس مسلمانا: خیبر- فدک- وادی القری- تیماء وسرانجام مکه وطائف وتباله وجرش را گشودند وازشمال تاتبوک وایله وازجنوب تانجران ویمن وعمان وبحرین ویمامه پیش رفتند.

همینکه درسال ده هجری پیغمبرصلی الله علیه وسلم درگذشت، سراسرشبه جزیرهٔ عربستان تحت نفوذ مسلمانان بود وپیغمبرصلی الله علیه وسلم درزندگی خود مشاهده فرمودکه حکومت اسلام از شمال به تبوک وایله وازجنوب بکرانه های یمن وازمشرق بخلیج فارس وازمغرب به دریای قرمز توسعه یافته است.

ابوبکررضی الله عنه نخستین خلیفهٔ پیغمبرصلی الله علیه وسلم همینکه ازکارمرتدان فارغ شد، بشام وعراق لشکرکشید ودرزمان عمررضی الله عنه فتوحات شام وعراق ومصرپایان یافت وبیشترفتوحات اسلام درزمان عمررضی الله عنه واقع شد، عثمان رضی الله عنه نیزممالکی راگشود وبعدازموت عثمان رضی الله عنه مسلمانان تامدتی دچار جنگ داخلی شدند وازکشورکشائی باز ماندند تااینکه دورهٔ خلفای راشدین سر رسید وخلافت به معاویه رضی الله

عنه واگذارشد ودرزمان اوشامات ومصرونوبه وقسمتی از افریقای شمالی وعراق وفارس وارمنستان وآذربایجان وگرگان ومازندران وخوزستان وغیره بزیرپرچم اسلام درآمده بود.

خلیفه درمدینه یاکوفه می نشست وفرمانروایان خود را به اطراف میگماشت، درآن موقع مهمترین کشورهای اسلامی شام بود، سپاهیان درحمص- قنسرین- اردن- فلسطین وسرحدات این کشور میزیستند، پس ازشام کشورعراق مهم بود واراضی سواد(میان دجله وفرات) جزء عراق محسوب میشد مرکزعراق شهرکوفه، کنار فرات بود شهرها وایالت های دیگرمانند: بصره، قرقیسیه، ری، اصفهان، نهاوند، آذربایجان، حلوان، همدان، مازندران، پس ازعراق بحساب می آمدند، درعربستان شهرهای مکه، طائف، بحرین، عمان، صنعاء ودرافریقا مصرونوبه وبلاد مغرب جزء متصرفات اسلامی بود.

حکام وفرمانداران جزء وکل این نقاط مستقیماً ازمدینه(کوفه) تعیین می شد فقط والی شام میتوانست حکام زیردست خویش را تعیین نماید وهمین قسم والی مصرغالباً فرمانروایان جزء نوبه وسایرممالک افریقارامعین می کرد.

معاویه رضی الله عنه درزمان عمررضی الله عنه والی شام شد وتاشهادت علی رضی الله عنه درآنمقام باقی ماند وبعدازآن خلیفه قرارگرفته پایتخت اسلام را به دمشق انتقال داد، اما جزیره عرب از اطاعت معاویه رضی الله عنه سرباز زده به علی رضی الله عنه وفرزندان او وفادار ماند وبعد از موت حسین بن علی رضی الله عنه شبه جیزیرۀ عربستان بدست عبدالله زبیر افتاد وهمینکه عبدالله زبیررضی الله عنه درزمان عبدالملک بن مروان بدست حجاج کشته شد، شبه جزیرۀ عربستان هم ضمیمۀ قلمرو بنی امیه گشت(۷۲هجری)

درزمان بنی امیه! امپراتوری اسلام وسعت بیشتری یافت واندلس نیزبه تصرف آنان درآمد، سپاهیان بنی اموی از اسپانی گذشته بکوه های پیرنه رسیدند وازآنجابه خاک فراسنه تاخته تارود رن پیش رفتند۱۱۴هجری- فرنگیان که این را دیدند بلرزه درآمدند چه می فرمایند علماء دین بیم آن داشتندکه کشورآنان مانند اسپانی بدست مسلمانان بیفتند، لذا باهم متحد گشته باتمام قوا در محلی میان تورس وبواکتیه بااعراب جنگیدند، این جنگ در زمان شارل مارتل سردار نامی فرانسه وجد شارلمانی امپراتور نامی فرانسه اتفاق افتاد ومدت چندروز طول کشید مورخین فرنگ شرح مفصلی از این جنگ تاریخی نگاشته ودرضمن برای اهمیت دادن به پیشرفت خود ازدلیری وجنگجوئی اعراب بسیارسخن گفته اند اما تاریخ نویسان عرب داستان این جنگ را بطور اختصار بیان کرده اند.

مثلا فرنگیان می گویند: درسال۷۳۲میلادی رزم سختی میان شارل مارتل وعرب ها درگرفت، عربهاشکست خورده باسپانی گریختند وسردارآنان عبدالرحمن در این جنگ کشته شد.

نکته مهم اینکه اگرعربها فراسنه را می گرفتند، سراسر اروپا بدست مسلمانان می افتاد زیرا فرانسه قویترین کشورهای آنروز اروپا بود واگرآن کشور فتح می شد زبان ودین وآئین اروپائیان تغییرمی یافت، همه مسلمانان میشدند وبعربی صحبت می کردند همانطورکه بیشترمردم آسیا وآفریقا چنان شدند والبته دراین شکست اسلام وفتح اروپا حکمتی بوده که ماازفهم آن عاجزیم بهرحال درزمان بنی امیه فتوحات اسلامی ازفارس وخراسان تجاوزکرده تامرز هند رسید.






# د کندهار زندان دماتیدو په ویاړ

حافظ محمد خراساني

له نن نه درې کاله مخکې د یکشنبې په ورځ د دوشنبې په شپه د ۲۰۱۱ کال اپریل د میاشتې په ۲۴ نیټه طالبانو د یوه حیرانوونکې فلمي اقدام په ترڅ کې د کندهار له بند څخه خپل ۵۳۰ کسه سرتیرې مجاهدین په داسې حال کې خلاص کړل، چې د سهار تر اتو بجو پورې د حکومتي چارواکو پیریان هم پرې خبر نشوو.

د کندهار زندان په داسې ځای کې موقعیت لري، چې د د بیلابیلو ارګانونو امنیتي څارونکو د ګڼو کړیو په منځ کې ګیر دی. له امنیتي کړیو څخه پرته هلته ګڼې آبادیاني هم شته.

تاسو دا فکر ونکړئ چې په دې زندان کې خو به ګڼ شمېر مجرمین بندیان وي، د چا خلاصون چې د ټولنې لپاره زیانمن ثابت کیدای شي. نو طالبانو باید د هغوی د خلاصون اقدام نه وای کړی.

تاسو ته به معلومه وي، چې په اوسني وخت کې داسې خلکو ته واک رسیدلی، چې ګڼ یې د صلیبي یرغلګرو ملګري، غله، قاتلان، رشوتخواره، بدکاره او مردار خواره دي، نو تاسو څه فکر کوئ، چې په زندان کې به څوک بندیان وي؟ ځکه حکومتي چارواکي چې په خپله د ناوړه اعمالو مرتکب وي، له قتل، شکنجه، رشوت، فحاشي، غلامي او هیڅ ناوړه عمل څخه مخ نه وي اړولی، هیڅ کله د ځان په شان خلک د تورو تمبو شاته نه ور ټیل وهي، بلکې هغه کسان به زندان ته اچوي چې دوی له خپلو ناوړه کارونو څخه منع کوي او د دوی مخ نیوی کوي.

ربښتیا هم د کندهار د زندان د ماتیدو په مهال هلته ټولټال ۵۴۰ بندیان وو، یوازې ۴۰ کسان په جنائي تور تورن وو، نور ټول هغه دیني ملایان او طالبان وو، چې د لاسپوځي رژیم او صلیبیانو پر خلاف یې د هغوی د ناوړه کړه، هغه یې د خپل فعالیت مرکز وګرځوله، له هغه ځای څخه یې د زندان په لور د ځمکې لاندې په لغم (تونل) وهلو پیل وکړ.



دا يو ډېر تکليفي او خطرناک کار وو، طالبانو د ډېرو ستونزو او مشکلاتو څخه وروسته د شپږ مياشتو په موده کې د لغم په مټ ځان بالکل د زندان لاندې ورسول. طالبان وايي: موږ ډېر ستونزمن کار کول، ولې خپل همت مو له لاسه ورنکړ، د شپې به مو آرام کول او د ورځې به لغم وهل، ځکه د شپې لخوا د کار کولو په پايله کې ډير امکان وو چې خلک زموږ د کار کولو آواز واوري. چې څومره لغم په مخ تلو، نو له موږ سره به خاوره زياتيده، تر څو يوه ملګري وړانديز وکړو، چې په ښار کې د نويو آباديو لپاره خاورې ته ډېر زيات ضرورت دی، نو راځئ چې د خاورې تجارت پېل کړو، ملګرو د هغه وړانديز ډېر زيات خوښ کړو، ولې ورته يې وينا وکړه چې همدا کار به ته ترسره کوې، خو ډېر زيات په احتياط. بيا همغه کس به له خلکو سره د خاورې د رسولو سودا کوله، او نوموړي به په خپل وخت هغوی ته خاوره رسوله. چې له يو لورې د خاورې د ډېر والي له ستونزې څخه خلاص شوو او له بل لورې مالي ستونزه مو هم يوه اندازه حل شوه، ځکه د خاورې له خرڅيدو څخه يو اندازه پيسې تر لاسه کيدی، چې موږ به په خلاص مټ په خپل ورځني کارونو کې مصرفولې، د يادونې وړ ده چې د لغم خاوره به په بازار کې موجودو نورو خاورو څخه په ښه بيه خرڅېده، ځکه دا خاوره د ځمکې له تل څخه ويستل شوې وه، صفايي او نرموالی يې له نورو څخه خورا زياته وه.

د دې کار تر ټولو اهم اړخ راز ساتنه وه، چې لله الحمد تر پايه پورې زموږ راز په خپل ځای محفوظ پاتې شو. موږ څو محدود کسان و، تر آخره پورې مو په زندان کې هم له درې کسانو څخه پرته څوک خبر نکړل.

د لغم وهلو په اوږدو کې موږ له ډېر زيات کړاوونو سره مخ شوو، کله به کاڼي مخې ته راغی، کله بل څه، په همدې ليار کې سړک او ځيني لښتي هم وو، موږ هڅه کوله چې له سړک او لښتې څخه لغم ښه لاندې وباسو. تر خپله وسعه پورې موږ هڅه کوله چې لغم سيده د بنديخانې يو ځانګړي ځای ته وباسو. يو ځل د معمولي غلطي له امله بل لورې ته لاړو، چې له امله يې زموږ څو ورځې ضائع شوې، تر ټولو ستره ستونزه دا وه چې د لغم د اوږدوالي له کبله به په لغم کې آکسيجن ډېر کم شو، نو موږ به په ډېر تکليف سره آکسيجن کمبود پوره کول، او له ډېر پخواني سيستم بنيٖ څخه مو کار واخست.

د دې لغم اوږدوالی ۳۳۰ متره، عرض يې تقريباً څلور فټه او جګوالی يې تقريبا اووه فټه وو، د لغم کار تقريباً ټول په عادي وسائلو تر سره شو. سره له دې چې دا کار ډېر زيات ستونزمن او له کړاوونو څخه ډک وو ولې موږ بيا هم د خوشحالي او ډاډ احساس کول، د تکليف او کړاو په بدله کې موږ د آخرت د اجر توقع درلوده.

يو ځل داسې هم وشوو چې امنيتي چارواکي ناببره د حويلۍ منځ ته راغلو، نه پوهيږم هغوی په څه خبره شکې شوي وو، د حويلۍ د تالاشي اخستو څخه وروسته يې د لغم خولې ته اشاره وکړه داسې يې وويل: دا څه دي؟ زموږ يو ملګری چې ډېر زيات حاضر ځوابه دی په ګړندي ډول ورته ويل: صيبه دا خو مو د حويلۍ د تشنابونو لپاره څاه کنستلې ده، نن سبا هسې هم خلک خوراک ډېر کوي او څاه ګاني ډېر ژر ډکيږي. له دې خبرې سره هغه

عسکر وخندل او له ملګرو سره یو ځای له حویلۍ څخه ووتل. د هغوی پیریان هم له دې خبرې څخه نه وو خبر چې د دې ځاه بله خوله به د زندان منځ ته رسیږي.

مشهوره ده چې فرهاد د خپلې معشوقې په عشق او لاس ته راوړو په موخه غر سوری کړی وو، خلک د هغه میړانه ذکر کوي، عزم یې فولادي ګڼي، په اشعارو او کیسو کې یې ستایې، ولې باور وکړئ که په هغه مهال دا اوسنې د ځلوېښت هیوادونو یرغلګر ځواکونه او داخلي فوځونه وای، نو فرهاد به د سترګو په رپ کې د غره له سوري کیدا څخه لاس په سر شوی وای او دونه لرې به تښتیدلی وو، چې بیا به یې چا نوم هم نه وو اخستی او نه به هغه د غر د سوري کولو هوډ څرګند کړی وای. له هغه سره خو دا ویره نه وه چې خاوره به څه کوم؟ بس له غره څخه به یې ښکته پورې وهله. دا غم هم ورسره نه وو چې څوک به مې ونیسي؟ دا غم هم ورسره نه وو چې له هغه بل لوري څخه به په ډیر کم وخت کې پنځه نیم سوه کسان را وباسم؟ دا ویره هم ورسره نه وه چې بیا به دا پنځه نیم سوه کسان چیرته بوځم؟ دا ویره هم ورسره نه وه چې هسې نه څوک را باندي خبر شي؟، هغه یوائې بل لوري ته اووښت او بس؟

ولې له طالبانو سره دا ټولې ویرې وې، هغوی خپل مرګ په سترګو لیدل، ولې بیا هم له خپلې ارادې څخه تیر نشول. تر څو یې د کامیابۍ په درشل پښه کیښوده.

خبره د لغم روانه وه، طالبانو لغم د زندان لاندې ځانګړې ځای ته ورسول او د انتظار شیبې یې پیل کړې، له خپل پلان سره سم یې په معینه شپه د بندیخانې په منځ کې په یوه ځانګړې کوټه کې د شپې په دوولس بجو په داسې حال کې سر را پورته کړ، چې له ځانګړې کس څخه پرته نور ورته حق حیران شول، زندانیان په دې نه پوهیدل چې څه وکړي، وژاړي او که وخاندي، د لیونو په شان به یې کله سوري ته کتل او کله بې هغه کس ته کتل، لار ترې ورکه وه چې څه وکړي؟ ولې را پورته شوی کس له نورو ملګرو سره چې مجهز وسائلو باندي سمبال وو، په ګړندي ډول زندانیانو ته د خاموشه اوسیدا امر وکړو، او په پټه خوله یې ورته وویل: ژر کوئ چې ناوخته دی! زندانیان په ډیر احتیاط سره یو یو لغم ته ور ښکته کیدل، په همدې ترتیب سره د همدې کمرې بندیان ټول د لغم له لیاري حویلۍ ته ولیږدول شول، چې هلته بیا توظیف شوې کسانو دوی د ورو موټرو او ټیکسیانو په مرسته یو بل لوري ته لیږل.

طالبانو په ډیر حکمت سره یوه کمره خالي کړه، او د دوهمه کمرې په لور ورغلو، بیا د دریمې، بیا د څلورمې، په همدې ترتیب یې د سهار تر اذانه پورې ټولې کمرې له بندیانو څخه خالي کړې.

په هغه شپه د زندان پیرداړانو په ډیره میړانه د زندان امنیت تامین کړی وو، خپله پیره یې په ډیر صداقت او اخلاص سره سرته رسوله، ولې دوی څه خبر وو چې زمریان د ځمکې له لاندې څخه د زندان منځ ته ورننوتلې دي.

وروسته بیا معلومه شوه، چې د زندان ټول پیرداران همغه زندان ته وروغورځول شول. ولې دحکومتې چارواکو دا عمل له انصاف څخه لیرې ښکاري، ځکه پیردارانو خو خپل مسئولیت په سمه توګه تر سره کړی دی، نه یې چاته لیار ورکړي او

نه يې بندي پرې ايښی، هغوی خو پيريان نه وو چې د ځمکې له لاندي څخه هم خبر شي، ستاسو څه خيال دی که د همدې پيردارانو په ځای خپله کرزی يا د شمالي ټلوالي کوم قومندان وای نو هغوی به څه کړي وو؟

نـــور دې غليمګيـــه د پـــښتو لـــه وســـه تيـــره ده
لاړه نـــور خبـــره د نـــاټو لـــه وســـه تيـــره ده

کينـــه لاس تـــر زنـــي ورتـــه وګـــوره زنـــدان تـــه دې
دا ترخـــه صـــحنه ســـتا د ليـــدو لـــه وســـه تيـــره ده

مـــوږ لکـــه پـــه ســـر د ځمکـــې لانـــدې هـــم مـــزل کـــوو
دا ستاســـو خورانـــو ليونـــو لـــه وســـه تيـــره ده

و دې ليـــد اعجـــاز د ســـپين ايمـــان او کرامـــت زمـــا
دا د کليـــسا د منتـــرو لـــه وســـه تيـــره ده

ســـتا پـــه ســـوله ســـاتو بـــه يـــې څـــومره ډار تيـــر کـــړی وي
دا د اربکيـــانو مليـــشو لـــه وســـه تيـــره ده

ســـو بـــه د احمـــد د بچـــو متـــې پـــه زنجيـــر تـــړې
دا د څـــو خيرنـــو زولنـــو لـــه وســـه تيـــره ده

راشـــه ننـــواتې د ميـــرويس نيکـــه پـــښې مـــچ کـــړه
نـــوره دې ســـيالي د شـــاه زلمـــو لـــه وســـه تيـــره ده

زيـــری بـــه ذاکـــره د بګـــرام د ماتيـــدو وشـــي.
نـــور حوصـــله د ولچکـــو لـــه وســـه تيـــره ده

داسې ويل کيږي چې د زندان له ماتيدو څخه وروسته د کندهار ولايت والي د زندان کتو ته ورغی هلته يې له يو پهردار څخه پوښتنه وکړه: طالبان څرنګه وتښتيدل؟

هغه ورته ځواب ورکړو: صيبه نور خو نه يم خبر، البته له پښې څخه يوه ورځ مخکې بندي طالبانو په همدې کمره کې باندار جوړ کړی وو، خپل اشعار يې ويل چې کسر يې دا ټکې وو.

زموږ تر تال لاندې سوريه سبا کوچ دې لاليه، سبا کوچ دې لاليه

# امریکاپه مصرکې څه غواړي؟

لطیف عزم

امریکا په مصرکې یو داسې ښکاره او تعریف شوې سیاست نلري چې د هغه له مخې د کومې خاصې ډلې او جهت ملاتړ او حمایت وکړي بلکې یواځې د هغه چا حمایت او تائید کوي چې د امریکا د حساسو او مهمو ګټو احترام او درناوی وکړي، چې له هغو جملې نه اسرائیلو سره د سولې قرارداد (کمپ ډیویډ) تړون ده، بل په اصطلاح د اسلامي بنسټ پالې مخ نیوی دی، همدارنګه د امریکا مهم هدف د سوئز کانال ته لاس رسی او په هغه باندې سلطه لرل دي.

کمپ ډیویډ، هغه تړون دی چې په کال ۱۹۷۸ کې د مصر د هغه وخت د واکمن (انور سادات) او د اسرائیلو د ړومبي وزیر (مناخیم بګین) ترمنځ د امریکا د ولسمشر په خاص میلمستون چې کمپ ډیویډ ورته وایې هلته لاسلیک او له هماغه ورځې ورسته د مصر او اسرائیلو ترمنځ د سولې قرارداد د کمپ ډیویډ په تړون هم زیات یادیږي.

کمپ ډیویډ د عربو او اسرائیلو ترمنځ د سولې ړومبی تړون دی چې له ۱۲ مسلسلو ناستو ورسته نهایي او د امریکا د ولسمشر (جمی کارټر) په حضور کې لاسلیک کړل شو، د غه تړون په عربو کې لوی تشویش رامنځته کړ او هغه یې په اصل کې د اسرائیلو د رسمیت پیژندلو په مانا وبالـه، همدغه عوامل وو چې انور سادات دوه کاله ورسته ترور او له منځه یوړل شو.

**سویز کانال:**

د سوئیز کانال د ابو یو کنل شوی مصنوعي کانال دی چې د سرې بحیرې او مدیترانې دریاب ترمنځ پروت دی، نوموړی کانال چې د مصر په خاوره کې واقع دی، د اسیا او اروپا لار پرته لدې چې په افریقا او اوږې لنډه په لنډه سره تړي، همدارنګه د هند اقیانوس هم د همدې اوږده کانال په توسط له اطلس اقیانوس سره نښلي.

تاریخي سرچیني وایي چې د سوئیز کانال په شپږمه میلادي پیړۍ کې د لسو کلونو په اوږدو کې د داریوش پاچا په امر وکنل شو.

نوموړی کانال د مصر د سیاحت او توریزم له پلوه دوهم لوی عایداتي منبع شمیرل کیږي. ویل کیږي چې په ۲۰۰۷ کال کې مصر د سوئیز کانال باندې د بیړیو د تګ او راتګ او ورپوري تړلو ګټو له امله ۴ ملیارده او ۲ سوه میلونه ډالر ترلاسه کړي وو.

د امریکا د مرکزي قومندې یو پخواني جنرال (آنتوني زیني) له مصر سره د امریکا د لچسپي او اهمیت داسې بیانوي : مصر په داسې یوې مهمې نقطې کې قرار لري چې مونږ کولای شو د همدې نقطې په توسط په اساني په ټولې سیمي کې شتون او یو ډول سلطه ولرو، په خاص ډول د سوئیز کانال چې مونږ د شرقي اسیا، شرقي افریقا او دنړۍ دو مهمو اقیانوسونو ته رسوي او مونږ کولای شو خپلې بیړۍ

اوکشتیاني دهمدغه کانال په زریعه چې چیرته په سیمه کې اړتیاوي داخلي اویایې ځای پرځای کړو.

دډیرو کاروپوهانو او سیاستوالو همدغه دریځ اوموقف دی چې امریکا په مصرکې دکمپ ډیوډ له تړون چې داسرائیلو امنیت پکې خوندي شوي اودیوه مستقل هیوادپه توګه یې ذکرراغلی ، همداډول دسوئیزکانال داقتصادي اوسیاسي موقعیت له امله چې امریکایانو تل هڅه کړي ترڅو نوموړی کانال کنترول اوترخپل ګورت لاندي وساتي ، نورپه مصرکې کوم بنیادي ترجیحات نلري.

مطلب داچې دمصرپه وړاندې دامریکاسیاست په دې کې متمرکزدي چې هلته دامریکادوه مهمې ګټې چې پورته یادونه ترې وشوه که هغه زیان ونه ویني ، مهمه نده ورته چې دمصرواګی له چاسره دي.

امریکاله حسن مبارک ،نه چې کومه ارزو لرله ، هغه یې کټ مټ دمرسي مخې ته هم کېښوده او همدااوس یې دالسیسي په وړاندې هم غوړولي ، سره لدې چې السیسي ټول بین المللي قوانین نقض کړل ، دیوې خونړۍ پوځي کودتا په زور مسلط وګرځیداوپه زرګونو بې ګناه مصریان یې قتل عام کړل اوزرګونه نوریې دزندان تورو تمبوته واچول اوپه سوونو یې داعدام حکمونه صادرکړل ، خو چون همدغه لوی قاتل دامریکا مهمو غوښتنو ته ژمن دي ، دکمپ ډیوډ له تړون څخه یې زیات داسرائیلو حفاظت او خوندیتوب ته ټینګ ولاړ دی او دفلسطین مسلمانان یې دغزې په تړانګه کې چې څه ډول اسرائیل ورته قومنده ورکوي په ټینګه کلابندی کې ساتلي، دهمدغې غلامی په انعام کې که السیسي ټول مصري ولس هم له یوې مخې له تیغه تیرکړي ، دامریکایانو اوغرب به ورسره اړیکي او ملاتړ همداسې روان اوجاري وي. که څه هم دالسیسي دکودتاپه مقابل کې په امریکایي پارلمان کې یولړ بحثونه اوغوښتني راپورته شوي چې امریکادې په ضد غبرګون وښیي اویادې لږ ترلږه دنظامي مرستو لړی اوسلسله چې هرکال دمصرپوځ ته ۲ملیارده ډالره ده کمه کړي ، خو اوباما په ۲ملیاډډالروسربیره په روان کال کې ، ۴ پرمختللي اف-۱۲جنګي طیاري ،۱۰ مجهزي اپاچي هلیکفتري او سل داني ام۱ آبرامز نوي اوپه پرمختللي ټکنالوجی سنبال ټانګونه هم مصري پوځ ته وسپارل

امریکاپه داسې حال کې له یوه داسې رژیم سره په دومره لویه پیمانه مرسته کوي ، چې دهغه هیوادپه اساسي قانون کې په صراحت داټکي راغلي چې هرهغه دولت چې ولسمشریې دکودتااوزورپه توسط منځته راشي ، دامریکاله مرستو نشي مستفید کیدلای ؟

دتعجب ځای خو دادی چې دمصر یوه پوځي اوقاتل دولت په دې سربیره چې څوزره مصریان یې په دې ګناه چې په مظاهرویې لاس پوري کوي ووژل ، اوس یې دهغو زرګونو مظلومو بندیانو اعدامولو ته هم ملټې بډوهلي..

تیره اونی چې یوې ناترسه محکمي د ۵۲۹ تنو مصریانو په حق کې داعدام حکم صادرکړ، وکیلانویې په فریاد داناري وهلي چې او ! دنړی حقوق پوهانو او ! دډیمکراسی مدعیانو وګوری دغه عدالت ! چې څنګه یوه تن قاضي د ۵۲۹تنوبندیانو دوسیې چې زرمخه لري دپنځودقیقوپه ترڅ کې وکتلي او بیایې خپله شیطاني پریکړه چې دهغو اعدام دی اعلان کړه !!

خوباوروکړی چې دغرب یوه بشري سازمان اوبین المللي محکمي هم کوم داسې جدي عکس العمل ونه ښود چې نوموړي پریکړه غیري عادلانه وښیي او عاملین یې ترپوښتني لاندي ونیسي.

تاسو یوځل په بازارونو کې وګرځئ څومره خلک په دروغو قسمونه کوي؟.
تاسو په کلي او چم ګاونډ کې خلکوته ځیر شئ چې له یوچا سره کومه ښیګڼه کړې وي یې په څومره وقاحت اوناځواني سره یې په مخ ورمنې؟.
او په بیډیو اوبجلکوپرتې پایڅې خو العیاذبالله عادي خبره ګرځیدلې ده، آن ډیر ملا صاحبان دنیت ترلو په وخت خلکو ته ناري وهي چې پایڅې پورته کړئ

# طالب د ولسي مقاومت نوم دی

انجینر یوسف افغان

هغه طالب چې پرون تر مسجد او حجرې پورې محدودو ؤ نن ورځ یو منل شوی نړیوال قوت دی، که پرون ورځ ئې په سیمه کې یو عادي نوم درلود نن ورځ بیا په درسته نړۍ کې د یو پیاوړي قوت، منلي سیاسي او نظامي ځواک او مطرح جهت نوم دی،

هوکې د دې ولس هر هغه با احساسه بچې چې د اشغالګرو په وړاندې د جهاد سنګر ته راوتلې طالب دی، طالب هغه ځوک دې چې دا دیارلس کاله یې په تشو لاسونو د نړیوال کفر پرمختللي نظامي او سیاسي، اقتصادي او تبلیغاتي ځواک مات کړ، اوس نو د طالبانو له قوت او همت نه انکار نشي کیدای که ځوک وایې چې طالبان یو څو نفره دي او یا وړوکي تنظیم دی، هغه به ستره سهوه کوي.

د افغان مجاهد ولس یو ځانګړنه داده چې د هر یرغلګر په وړاندې یې د جهاد بیرغ هسک کړی او جهادي سنګرونه ئې تاوده ساتلي دي،او کله چې په کال ۲۰۰۱م کې صلیبي قواو په دې پاکه او مجاهده خاوره وحشیانه یرغل وکړ افغان میړني ولس بیا هم د تیر په څیر د کفارو پر وړاندې د ازادۍ او خپلواکۍ جګړه پیل کړه خو د نورو هغو سره په دومره توپیر چې داځل امیر معلوم ؤ، موقف واضحه ؤ او جګړه ګرانه وه، همداراز دښمن هم خورا زورور او مجهز ؤ، مګر ټولو نړیوالو ولیدل چې د تعداد او تجهیزاتو له پلوه خورا کمزوریو افغانانو د درستې کفري نړۍ په لکونو پوځ ته ماتې ورکړه، دا ځل نو یواځې یو هیواد یرغل نه ؤ کړی بلکې ټولې کفری نړۍ د اسلامي نړۍ د منافقو مشرانو په همکارۍ سره هجوم راوړی و.

افغانانو ته واضحه شوه چې له جهاد پرته بله د خلاصون لاره نشته باید خپله مبارزه روانه وساتي او نړیوال کفر ته معلومه شوه چې د طالبانو تر نامه لاندې د افغاني ولسي مقاومت پر وړاندې ئې ماتې خوړلې او ښه به دا وي چې نور نو دا ملاماتونکي جګړه پای ته ورسیږي.

هو موږ هم هغه یرغلګرو ته چې زموږ پر حریم ئې تیری کړی او حشر ګړو ته ئې دا پیغام ورکوو چې تاسو نه شۍ کولای دا یمان په وسله سمبال دغه کوچني مجاهد ټولي ته ماتې ورکړۍ، ښه به دا وي چې تاسو خپله ناروا جګړه پای ته ورسوۍ او ژر تر ژره مو عسکر او لاسپوڅي زموږ له خاورې در وغواړۍ، کنه نو دا په یاد ساتې چې افغان میړني ولس په خپل ټول تاریخ کې د ظالم پر وړاندې تسلیم شوی نه دی، هغه بې ضمیره او بې وجدانه خلک چې نن ئې د اردو او پولیسو تر نامه لاندې ستاسو خوا نیولی ده یواځې د یو څو ډالرو وږي دي او که ئې نه منۍ تاسو پرې یوه میاشت تنخوا بنده کړۍ بیا وګورۍ چې دوی څنګه جنګ ته دوام ورکوي او کنه؟ د وطن ساتنې تر نامه لاندې ډرامه مخ ته وړي او که نه؟؟ دا یو حقیقت دې چې صلیبیانو دلته ماتې خوړلې ده او ان شاءالله لکه د روسانو په څیر به مخ توري له دې خاورې تښتي خو دومره ده چې قربانیو ته لا ضرورت شته، د اسلام تږی باغ به د سپیڅلو شهیدانو په وینو خړوبیږي، د جهادي سنګرونو اتل مجاهدین باید خپله

مبارزه په پوره میړانه مخ ته یوسي او تر هغې چې اشغالګر عسکر له دې خاورې وتلي نه وي او دلته یو سوچه اسلامي نظام نه وي نافذ شوی مبارزه به پای ته نه رسیږي.

نور نو هغه کیسې او پروپاګند هم کومه ګټه نه لري چې کفارو به ویل طالبان یواځې یو څو نفر دي او په کمه موده کې به له منځه لاړ شي هر چا ولیدل چې د یو طالب په شهادت څو نور طالبان د جهاد ډګر ته راوړاندې شوي دي، بیشکه چې طالبان د افغان ولس د مقاومت نوم دی، د قوت سرچینه ئې الهي مرسته او د افغان مجاهد ولس بې ساري همکاري ده.

د نمایشي انتخاباتو له طریقه د غلامۍ ډګر ته راوتلی عبدالله عبدالله او اشرف غني دې هم ښه په خلاصو غوږونو واوري چې نور نو دا ولس له ډیموکراسۍ نه کرکه کوي، نور نو تاسو نشئ کولای چې د سولې، پرمختګ، د ښځو حقوقو او په نور نومونو ولس ته په سترګو کې خاورې واچوئ ضروري داده چې تاسو د نور د دغه ناروا اشغال د دوام باعث نشئ او مه پریږدئ چې پر افغان ولس نور د صلیبي یرغلګرو ظلمونه او وحشتونه دوام وکړي او که بالفرض تاسو بیا هم د کفارو په پاتې کیدای، د ډیموکراسۍ په استحکام او د طالبانو پر وړاندې په جنګ کولو ټینګار کوئ نو پایله به ئې ستاسو په خیر هم نه وي، طالبان د دې ولس نوم دی، د نړیوال منل شوي ځواک نوم دی او که تاسو د طالبانو د مبارزې پر وړاندې خنډ جوړوئ کومه مبارزه چې د ټول ولس د هیلو او ارزوګانو مجموعه ده، نو ستاسو بری ناممکن دی هسې به مو خپل عمر او دغه په اصطلاح د واک چارې د کفارو تر خدمت زار کړي وي، دا ولس مسلمان ولس دی او دلته د اسلامي نظام پرته د بل نظام چلیدل هسې خوب او خیال دی، پریږدئ چې افغانان دلته د شرعي نظام تر سیوري لاندې نور د ارام سا واخلي هغه نظام چې دا دیارلس کاله یې د منځ ته راتګ په خاطر مبارزې ته دوام ورکوي.

# قدرت ښونکي فکرونه

(صفـــا)

۱: په دې دنیا کې ستا د شتوالي ګڼ دلیلونه شته، خو تر ټولو اوچت دلیل دا دی، چې ته یو مهم څوک یې چې دنیا ته د راتګ چانس در کړل شوی، که چیرې مهم نه وی، نو دلته به اصلاً راغلی نه وی.

۲: ستا ژوند په تا پورې اړه لري، ته د خپل ژوند مسئول یې او یوازنی سړی چې ستا ژوند باید په لاس کې واخلي، هغه ته پخپله یې، نو د خپل ژوند د لاسته راوړلو او د هغه د منسجمولو لپاره فوراً اقدام وکړه.

۳: هغه کسان قرباني کېږي، چې خپل ژوند د نورو دحکمونو په اساس اداره کوي.

۴: هغه وخت چې ستاسو د ژوند د اداري او لارښوونې خبره رامنځته کیږي، هیڅکله له ځان پرته په بل انسان تکیه مه کوئ.

۵: د ژوند چارو ته توجه یوازې په دې معنا نه ده، چې خپلې سترګې پرانیستې وساتئ، بلکې د خاصو پروګرامونو زده کول او ګام په ګام د هغو عملي کول دي.

۶: د خپل ورځني توب او روزمرګی اسیران مه کېږئ، آینده ته طرح ولرئ او د خپلو ډېرو موفقانه اعمالو وړاندوینه وکړئ.

۷: تصمیم ونیسه، چې ژوند وکړې، نه دا چې هسې ورځ تېره کړې، ژوند ستا لپاره یو فرصت دی، په دغه فرصت کې په هغه چا بدل شه، چې ته ورباندې افتخار کوې.

۸: خپلې مراندې په خپله وخوځوئ، موږ په ناڅرګندو مزیو له خپل ډار سره تړل شوي یو، موږ نانځکې یو او په خپله ددغو نانځکو ګډوونکي هم یو او د خپلو هیلو او غوښتنو قربانیان هم.

۹: تل په ځان باور ولرئ، که چیرې مو یوازې یوځل هم کوم کار په موفقیت سره ترسره کړی وی، بیا یې هم کولی شئ.

۱۰: مسئولیت ته غېږه ورکړه، پرېږده چې هرڅه پېښېږي، پېښ دې شي.

۱۱: له یاده مه وباسئ! د ژوند د بدلون امکان شته، نورو دا کار کړی دی.

۱۲: شدیدې غوښتنې ولره او غوره شیان وغواړه، ترڅو چې غوره توبونه تر نورو لومړی ستا په لور راشي.

۱۳: تصمیم بېل شی دی، هغه له خپلو خیال پلوو سره مه ګډوئ، که چیرې ستاسې تصمیم کوم عمل رامنځته نه کړي، نو په دې پوه شئ، چې واقعي تصمیم مو نه دی نیولی.

# په افغانستان کې دعیسـ ـایت زمینه

ابو معاویه

((داشرف غنی احمدزی مېرمن لوراغني وايي: دصلیب چوپړزمادلومړیو موخوڅخه دی.))

داچـې ګـران هیوادافغانـسـتان یوسـوچه اسـلامي هیواددی نوتل کفری اشغالګرکوښښ کوی چې دفوځي یرغل سره سره مـذهبي یرغـل هم وکړي، پـه دې ټولو یرغلونـو کي دعیسایت یرغل ناوړه دي،اوعیسایي مبشرین تل داکوښښ کوي چې لومړی نوک ځای اوبیاسوک ځای کړي دکلیسا په تاریخ (Church History) کي لیکي:

عیسایي مبشرین وایي موږډیرکوښښ وکړچې په ټوله نړۍ کي صلیب روښانه کړو، خودوه ځای ناکامه شویو په افغانـستان کي اوبـل پـه سـعودی عربـستان کي اوموږبـه ډیرکوښښ وکړوچې په دې دووځایونوکي لومړی نـوک ځای اوبیاسوک ځای کړو.

دامریکااومتحـدینودفوځي اشـغال سره سره دامریکـا اواروپاعیسایي مبشرینوګران هیوادافغانستان ته مخه کړه پــه دې مبـشرینوکي کاتولیکــان،ارتودوکس، انګلـیکن، لوترن اوداسی نور... شـامل دي،داټولـه مبشرین ددې لپـاره راغلـل ترڅوماهیـان ونیـسي خوالحمـدلله ثـم الحمـدلله وافغانانوتـه داسلام دمبارک دیـن څخـه پرتـه بـل هیـڅ دیـن دمنلوړنـه دی خوډامنوچې دګوتوپـه شمیرکسانوبه خپـل ځانونه دپیسو، وظیفې،امتیاز، جایداد اويا نورڅه باندی ځانونه خرڅ کړی وي.

عیسایي نړۍ دافغانانودمرتـدکولوتکل لـه ډیـره وختـه لـري ان دلـوی برطـانې پرمهـال دوی ډیرکوښښونه کـړي وه داچې دوی دوه ځلی ماته وخوړه نوځکه ئې مـذهبي یرغـل هم ناکامه شو، هغه بایبل چې زماولاسته راغلی دی هغـه لـومړی پښتوبایبل دی چې د(دالله کلام) پـه نامـه سره يـاديږی اوپـه (۱۸۹۵) مـیلادي کـال کی پـه لندن کی پـه لاس بانـدی لیکـل شـوی دی وبـل لورتـه کیـدای شي پـه هغـه وخت یوپـښتون اویاهم افغان عیسایي نه ؤخودوی داکلک هوډدرلودی چې موږبایـد داکـاروکړو،دیوې لـسیزی راهیـسی عیـسایي نړي کوښښ کوي چې په افغانستان کی رسمي کلیساجوړه کړي.

داچې اوازه داسی ده چې دګران هیوادراتلونکی ولس مشربه اشرف غنی احمدزی وي، لومړی داچې داشغالګروپه ټانکونوسپورچې هرڅوک راشـی هغـه بـه دصـلیب خـدمت عبادت ګڼي خوداشرف غنی احمدزی سلنه بـه ترنورزیاتـه وي داځکـه چې داشرف غني احمدزی مېرمن لوراغني (Lura Ghani) دلبنان یوه عیسایي راهبـه ده، اودهغې ویناه ده چې زه بـه ترټولودمخـه دصـلیب خدمت اوچوپړکوم،عیـسایت بـه خپروم، کله چې ددې داڅرګندونې پرنیټ باندی خپرې شوې نوبیادخلکودغولولوپـاره ئـې دقـران کـریم یوڅوایاتونـه تـلاوت کـړه اوبیـایي پرنیـټ باندی خپاره کړه ترڅوداشرف غني احمدزی خواخوږی نورعام اولس تیرباسی نودعیسایي نړۍ داخوب بـه رښتیانشي، کـه څـه هـم دلسوکلونوراهیـسی غربي رسنیوواشرف غني احمدزی تـه ډیرچوپړوکړ هغـه ئې

دټولو افغانانو څخه متدين، تعليم يافته، پوه، اوزيرک ښکاره کړ، چې په حقيقت کې دا هڅه دعيسايي نړي کوښښونه دي، په ګران هيوادافغانستان کې عيسايي نړي خپلې اغيزې ښکاره کړې هم دي څوک ئې مرتد کړل، په چاځې دنبوت دعوې وکړې، څوک ئې په پيسورانيول په چاځې دبشريت مکلمه ضابطه قران کريم وسوځاوه اوداسې نور...

خو ! الحمد لله افغانان پوه اوځيرک دي اودعيسايي نړي وهرشوم پلان ته په هوښيارۍ سره ځواب ورکوي اوداسې دعيسايي نړي ټول شوم پلانونه به له خاوروسره خاوري شي.

عيسايان په مجموع کې پوره کوښښ کوي چې په ټوله نړۍ کې صليب ځلانده کړي هم په عربو کې اوهم په عجمو کې دوی په عربو کې تردې کچې پوری کوښښ کړيدی چې دعربو لپاره ئې بايبل په يوولسو لهجو کې چاپ کړی دی لکه مصري لهجه، يمني لهجه، عراقي لهجه اوداسې نور...




دبايبل پښتو لومړی ژباړه په هندوستان کې په (۱۸۵۳) ميلادي کال کې وشول، اوهغه ئې چاپ کړ، دبلوڅي اوبراهوي ژبو بايبلونه ئې په (۱۹۰۷) ميلادي کال کې چاپ کړل ، ددری/فارسی ژبې بايبل په (۱۸۸۴) ميلادي کال چې خپوراوچاپ شوتاسې کولای شی ددې په لاندی کتاب وګوری:

قاموس الکتاب پاڼه ۱۲۷

ليکوال: ايف ايس خيرالله، خپرونکي: مسيحی اشاعت خانه ۳۲ فيروزپورروډ لاهور ۲۰۰۸

له دې څخه علاوه دوی بايبل په (۲۰۰۰) ژبوباندی ژباړلی دی اوخپروي ئې، په امريکا کې دعيسايانو يوه ډله د(مورمن) په نامه دوی پخپلو پوهنتونونو کې په ۳۸ ژبوباندی تدريس کوي، چې دا ټول عيسايي مبشرين دی اوبيائې په نړۍ کې تقسيموی وهرې سيمې ته چې ځي دهغې سيمې دخلکو عادات، رواجونه اوخويونه هم وربښودل کيږی دامبشربياهلته ځی اودعيسايت تبليغ کوي، دوی يوه ګڼه هرمياشت چاپوي په ۳۸ ژبوباندی اودهرې ژبې دګڼو شمېرئې ۲۰۰۰۰۰ دوه ميلونه دی، چې ټولې ۷۲۰۰۰۰۰ ميلونه کيږی دابيا په نړۍ کې خپروي وريا هرڅوک کولای شی داګڼه ولاسته راوړي.دوی دخپل ددې نسخ اوفسخ شوی دين لپاره په داسې لوړه کچه سره کوښښ کوي وبل لورته مور(امت مسلمه) دغفلت په خوب ويده يو ، اوددوی وتوطيوته موهيڅ فکرنشته، هغه اسلامي داعيان چې په دې لاره کې کارکوي هغه هم دګوتوپه شماردي، نوزه دامت مسلمه دعلماء، روحانيونو ، دعلم اوپوهې دخاوندانواوپه مجموع کې دقلم دخښتنانو څخه داهيله لرم چې دعيسايي نړي دهرشوم پلان لپاره يومورچل خلاص کړی ترڅوداټول امت لپاره دسوکالی سبب وګرځي. ( ابومعاويه )

# د شهید قاري فیض محمد سجاد

# ژوند ته کتنه

لیکنه : عبدالرؤف حکمت

دنیا د ازمېښت ډګر دی ، الله تعالی بې شمیره مخلوقات پیدا کړي ، چې ددې مخلوقاتو له جملې مهتم بالشأن یې مکلف مخلوق یا انسانان دي ، دانسان مکلفیت دادی چې دالله تعالی له احکامو سره موافق ژوند وکړي ، ترڅو دالله تعالی رضاء ترلاسه کړي او دالله تعالی محب او محبوب وګرځي .

د نبوي احادیثو له مخې د انسانانو ترمنځ غوره هغه څوک دی چې دالله تعالی له مخلوق سره ښه او له دیانته ډکه رویه ولري ،امام بیهقي رحمه الله یو حدیث روایت کړی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : الخلق عیال الله فاحب الخلق الی الله من احسن الی عیاله .

خلک دالله تعالی داولاد په منزله دي ، په خلکو کې الله تعالی ته محبوب هغه څوک دی چې د الله تعالی له عیال / خلکو سره ښه / نیکي کوونکی وي .

ددې حدیث په استناد کوم څوک چې دعامو مسلمانانو په قضاوت کې ښه بلل کیږي ، هرڅوک یې صفت کوی او دنیکۍ یادونه یې کوي ، څوک ترې شکایت او بده خاطره نلري ، بلکې خپل او پردي ټول ترې خوشاله وي ، دلوړ نبوي حدیث په استناد دداسې کس په اړه ویلای شو ، چې الله تعالی ته مقبول او قریب انسان دی ، ځکه دالله تعالی مخلوق چې له چا څخه راضي شو ، نو همدا دالله تعالی دراضي کیدلو په معنی دی .

نن چې موږ دکوم چا په اړه بحث کوو ، دا هم دهغو بختورو انسانانو له جملې څخه دی ، چې الله تعالیورباندې لوړ یاد شوی صفت پیرزو کړی دی ، قاري فیض محمدسجاد ، دجهادي مخکښانو په ډله کې یو دهغو کسانو له جملې څخه دی ، چې هیڅوک ترې بده خاطره نلري ، دکورنۍ غړي یې ، دجهاد او مدرسې ملګري یې ، دزندان او سفر اندیوالان یې او حتی له فکري لحاظه مخالف کسان یې ټول په ښه خوله یادوي ، ټول یې یوازې دحسن خلق یادونه کوي ، هغه حسن خلق چې داسلام له نظره د سړیتوب او مروت معیار بلل کیږي ، د اسلام له نظره دانسان تول په همدې ترازو کیږي هغه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یې په اړه فرمایي : ولا حسب کحسن الخلق . . د نیکو اخلاقو په شان بل شرف یا دافتخار وړ شی نشته . . رواه البیهقي .

## قاري فیض محمد سجاد

قاري فیض محمد سجاد د ایمانداد زوی د ملا عبدالوهاب لمسی په قوم پښتون / اڅکزی په ۱۳۸۵ هـ ق کال چې له ۱۹۶۵ میلادي سره سمون خوري د کندهار ولایت د تخته پُل ولسوالی په ملاید کلي کې دنیا ته سترګې وغړولې .

په کوچنیوالي کې دمور او پلار په خدمت او د کښت او مالدارۍ په چارو کې له خپل والد صاحب سره مصروف وو ، چې یو څه ستر شو ، نودیني زده کړې یې پیل کړې ، ابتدائي تعلیم یې په خپل اصلي ټاټوبي کې ترسره کړ ، او وروسته یې ددیني علم په حصول پسې د افغانستان او پاکستان مختلفو سیمو ته سفر وکړ .

ډیری دیني کتابونه یې دپاکستان په کوټه ، پیښور اولاهور کې په مختلفو دیني مدارسو کې ولوستل ، د قرآن کریم دقرأت او تجوید علم یې په لاهور کې ترلاسه کړ ، کله چې د کمونیزم په خلاف جهاد بریالی شو او هیواد له کمونیستانو ازاد شو قاري فیض محمد سجاد صاحب د کندهار په خاکریز ولسوالۍ کې دیني زده کړې پیل کړې ، د علمي سفر په دې ټوله دوره کې نوموړي مروج فنون خلاص کړل خو دنبوي احادیثو دوره یې لا نه وه کړې چې په افغانستان کې دطالبانو اسلامي پاڅون پیل شو ، چې په دې سره له نوموړي څخه خپلې دیني زده کړې په نیمایي کې پاته شوې .

## جهاد او په اسلامي امارت کې خدمتونه

هغه مهال چې قاري فیض محمد صاحب نوی ځوان وو په افغانستان کې د کمونیزم په خلاف مسلح جهاد روان وو ، نوموړي په تانده ځوانۍ کې لومړی ځل په کندهار کې د کمونیستانو په خلاف په مختلفو جګړو کې شرکت وکړ ، له دې جملې یوه مهمه جګړه د زابل او کندهار دلویې لارې په اوږدو کې د کمونیست رژیم دجبار ملیشې سره تاریخي جګړه وه چې په نتیجه کې یې دغه ملیشه په بشپړ ډول له منځه لاړه ، قاري صاحب په دې جګړه کې دیوه فعال مجاهد په حیث برخوال وو .

د کمونیستي نظام له سقوط وروسته قاري صاحب وسله په ځمکه کیښوده او د کندهار په خاکریز کې یې دیني زده کړې پیل کړې ، مګر کله چې په تنظیمي دوره کې فساد او ګډوډۍ اوج ته ورسیده ، او واقعي مجاهدین یې د ټوپکي مفسدینو په خلاف پاڅون ته اړ کړل ، قاري صاحب دهغو محدودو مجاهدینو له جملې څخه وو ، چې د کندهار په میوند کې یې په لومړي ځل دملامحمد عمر مجاهد تر مشرۍ لاندې پاڅون وکړ ، دطالبانو داسلامي تحریک بنسټ یې کیښود او په تدریج سره یې کندهار ولایت اوور وسته درست افغانستان د داړه مارانو او پاټکیانو له منګولو خلاص کړ .

د کندهار په ژړۍ کې چې د صالح قومندان په نامه دیوه محلي مفسد په خلاف طالبانو لومړنی جنګ وکړ قاري صاحب په کې برخوال وو ، چې د قومندان صالح له تیښتې وروسته په همدې سیمه کې د طالبانو د محلي مرکز مشري قاري صاحب ته وسپارل شوه ، کله چې طالبانو د کندهار باغ پُل سیمه ونیوله ، دباغ پُل په سیمه کې د جهادي طالبانو د مرکز مسؤلیت ورته وسپارل شو .

د کندهار له فتحې وروسته چې طالبانو زابل او غزني ولایات هم ونیول او دمیدان وردګو ولایت ته ورسیدل ، دغه مهال قاري فیض محمد سجاد د ملامحمد عمر مجاهد په امر د ۳۲ مجاهدینو په مشري میدان وردګو ولایت ته ولیږل شو ، په دې سیمه کې نوموړي نه یوازې د میدان ښار او د کابل دچهار اسیاب په جبهاتو کې په جګړو کې برخه اخیسته بلکې څه موده یې د میدان وردګو ولایت د سیداباد ولسوالۍ د ولسوال په حیث هم خدمت ترسره کړ .

## د سید اباد مثالي ولسوال

قاري فیض محمد صاحب په ۱۴۱۶ هـ ق کال کې د ۸ میاشتو لپاره د وردګو ولایت دسیداباد دولسوال په حیث پاته شو ، خو په دې ۸ میاشتو کې یې هلته داسې کردار ترسره کړ ، چې تراوسه یې نیک یادونه پاته دي .

داهغه مرحله وه چې افغانستان له سختې ګډوډۍ او بې نظمۍ څخه د راوتلو په حالت کې وو ، دطالبانو تحریک چې نوی یې د سیاست او حکومت دارۍ په عرصه ګام ایښی وو ، د اوس غوندې منظم نه وو او نه یې تشکیلات دومره چوکاټ ته لویدلي وو ، خو له ټولو مشکلاتو سره سره قاري صاحب په سیداباد کې دعدل او انصاف یوه مثالي اداره رامنځته کړه ، دعام اولس داسې رضایت او اعتماد یې ترلاسه کړ ، چې تراوسه پورې دهمدې سیمو اولس په خورا اخلاص او کلک اعتماد دخپلو طالبانو وروڼو ترڅنګ ولاړ دي .

مولوي حیات الله چې هغه مهال له قاري صاحب سره یوځای اوسیده ، وایي چې دقاري صاحب د ولسوالۍ په وخت کې د قومندان مسلم په نامه دحزب اسلامي یو قومندان چې پخوا دطالبانو

مخالف پاته شوی وو ، دنوموړي دښمن ګوزارې له امله په خپله سیمه کې ازاد اوسیده ، دغه رازیې نه په یاد کیږي چې قاري صاحب دې کوم څوک که څه هم مخالف به وو وهلی ، توهین کړی اویا هم بې آبه کړی وي او حتی خپلو هغه ملګرو ته یې عتاب ور کاوو چې له چا سره به یې بد چلند کړی وو .

مولوي حیات الله وایي یو ورځ زه او ملا فضل باري د سیداباد یوه قومندان ته چې پخوا له موږ سره مخالف وو ورغلو ، او ور ته مو ویل چې موږ ته راپور راغلی چې تا دمجاهدینو موټر او نور وسائل پټ کړي دي ، چې باید موږ ته یې راوسپارې .

کله چې موږ بیر ته راتلو نو دغه قومندان قاري صاحب ته راغلی وو او دغه کیسه یې ور ته کړې وه ، کله چې موږ راغلو قاري صاحب ډیر خپه وو او موږ ته یې خوشکې وکړې ، چې تاسو ولې په خپل سر داسې غلط کارونه کوئ ، تاسو کشران پرون له مدرسو څخه راپور ته شوئ ، الله تعالی یو فرصت در کړ اوس نه مجاهد ګورئ نه مشر او په بې احترامۍ ورسره حسابونه کوئ ، تاسو دغه پخواني مجاهدین او قومندانان باید وپیژنئ ، دوی داسلام لپاره دومره ستر خدمت کړی چې مثال یې نشته ، دوی د خپل همت او ایمان په زور د شوروي غونډې خدای دښمنه طاغوت ته شکست ور کړی ، د دوی قدر او منزلت باید وپیژنئ ، له دوی سره که موټر وي ، خو په خپل غیرت به یې په غنیمت کې ګټلی وي ، ستاسو څه مجبوریت دی چې په خپل سر له خلکو سره حسابونه کوئ .

مولوي حیات الله وایي د قومندان مسلم په نوم یو قومندان چې پخوا دطالبانو سخت مخالف وو او اوس بیا د کرزي په حکومت کې دسیداباد ولسوال دی هغه وخت دقاري صاحب دنیک چلند څخه دومره متاثره شوی وو ، چې نور خلک به یې دطالبانو صف ته دعوتول ، او حتی د ورد ګو په جلګه ولسوالۍ کې یې په یوه غونډه کې خلکو ته دطالبانو په پلوۍ تقریر وکړ .

د قاري صاحب د ښې حکومت داری یو ښه مثال دافغانستان دوتلي لیکوال احسان الله آرینزي هغه لیکنه ده چې په ۱۳۷۴ هـ ش کال د حوت په ۲۱ مه د شریعت اونیزې په پرلپسې ۱۲ مه ګڼه کې چاپ شوې ، ددې لیکنې عنوان دی ( دسیداباد په شرعي محکمه کې دیوې حقوقي دعوی خلاصول ) د احسان الله آرینزي پلار په سیداباد کې له حاجي خلیل نومي کس څخه یو چارک ځمکه پخوا اخیستې خو وروسته حاجي خلیل د تنظیمي بالادستي له امله بیر ته ترې ګرځولې او پوره لس کاله یې په ظلم کرلې ریبلې ده ، کله چې په سیداباد کې قاري فیض محمد ولسوال شوی احسان الله آرینزي خپل شکایت قاري صاحب ته کړی او هغه داسنادو دلیدلو ، پوښتنو او تصفیې څخه وروسته دمحکمې له لارې په څو ورځو کې دعوه حل او فصل کړې ، او ځمکه یې له لس کلن غصب وروسته بیر ته خپل اصلي مالک ته سپارلې .

دا پیښه وتلي لیکوال احسان الله آرینزي ډیره په دلچسپه بڼه بیان کړې ، قاري صاحب یې یو آرام سړی بللی چې دعارضینو خبرې یې په ډیر حوصله تر پایه اوریدې ، نوموړی په پای کې وایي : دلته باید دا په ډاګه کړم چې دسیداباد ولسوالي دطالبانو په وخت کې له څو کاله رکود وروسته بیا فعاله شوه ، که څه هم په شعباتو کې قالینې ، ښکلي میزونه ، موبل او فرنیچر موجود نه وو ، خو ډیره تقوی موجوده وه ، ما دخپلې دعوی په جریان کې په سلګونو کسان هلته ولیدل چې دخپلو کارونو داجراء یا دخپلو حقوقي او جزائي دعواګانو د حل او فصل لپاره په شعباتو کې ګرځیدل که څه هم د کارونو اجراء وخت نیوه ، او زیات تګ راتګ خلک پریشانه کوي ، خو هیچا د دوه افغانیو د رشوت خبره راته ونه کړه ، له مراجعینو سره دمامورینو پیش آمد ښه او دواسطې ، پیسو او زور قصه بیخي ختمه شوې وه .

## د جهادي مدرسې مهتمم

د ورد ګو ولایت په سیداباد کې له ۸ میاشتې خدمت څخه وروسته د عالیقدر امیر المؤمنین په امر قاري فیض محمد صاحب کندهار ته راوغوښتل شو ، مولوي حیات الله چې دصحنې شاهد دی وایي په کومه ورځ چې قاري صاحب له سیداباد څخه روانیدو ، نو د ددې سیمې سپین ږیرو او مشرانو د ډیر محبت له امله ورپسې ژړل ، خو دمشر تابه امر وو چې دغه پاک حاکم خپل رعیت د اخلاص له اوښکو سره پریښود او کندهار ته لاړ ، قاري صاحب په کندهار کې څه موده د باغ پُل په سیمه کې د مظهر العلوم مدرسې سرپرستي وکړه ، او کله چې د کندهار ستره جهادي مدرسه

تاسیس شوه ، قاري صاحب ددې مدرسې د مهتمم پـه حیـث وټاکـل شـو ، چـې دامریکایي یرغل تر مهاله یې ځلور کاله همدې دندې ته ادامه ور کړه .

د کندهار جهادي مدرسه یوه تعلیمي /جهادي اداره وه په دې مدرسه کې هغه طالبان اوسیدل ، چې په عادي حالاتو کې یې دیني درسونه ویل ، خو دضرورت په وخت کې د جګړې لومړیو کرښو ته تلل .

قاري فیض محمد سجاد صاحب ددې مدرسې عمومي مشر او مهتمم وو . .

نومـوړی د مدرسـې د چـارو پـه سمبالـښت سـربیره د کـال پـه اوږدو کـې جهادي کرښو ته هم تلو ، په دې لړ کې د کابل دشمال د جنګي کرښو سربیره په کنـدز ، تخـار او سـمنګانو کـې نومـوړي دخپلـې مدرسـې دطالبـانو پـه مـشرۍ جهادي وظیفه تر سره کړې ده .

پـه کنـدهار کـې د جهـادي مدرسې او نـورو اړونـد مدارسـو دطالبانوجهـادي مـشري یـوه مهمـه او سـخته وظیفـه وه چـې قاري صاحب پـه ډیر ښـه ډول اجراء کـړه ، نوموړی د خپـل سرشار اخلاص ، تقوی او حسن تعامل په واسطه توانیدلی وو ، چې د ځلـورو کلونـو پـه اوږدو کـې دمدرسـې دطالبانو چې شمیر یې د ۱۷۰۰ او ۲۵۰۰ په منځ کې چلیده ، ښـه رهنمـايي وکـړي ، دیني زده کړو تـه یـې متوجـه کـړي ، او د مدرسې نظم بر قرار وساتي ، هغه طالبان چې په دې موده کې په یادو مدارسو کې پاته شوي له قاري صاحب څخه یوازې ښې خاطرې لري .

د جهادي مدرسې د مشر توب سربیره نوموړي له امیر المؤمنین ملامحمد عمر مجاهد سره هم خورا نږدې تعلقات درلودل ، امیـر المؤمـین صـاحب پـه نومـوړي خـورا زیـات بـاور درلـود او دده استعداد یې در ک کړی وو ، ملاخلیل احمد چې هغه مهال دقاري صاحب ملګری وو ، وایي چې اکثره وخت مازدیګر یې ملامحمد عمر مجاهد لید چې په موټر کې به راغی ، قاري صاحب بـه یې له ځان سره واخیست او دماښام له لمانځه وروسته به یې واپس راووړ ، چې همدا له امیر المؤمنین سره دنوموړي په همیشني او نږدې مصاحبت دلالت کوي .

## د شمال محاصره او زنداني کیدل

هغه مهال چې امریکایي یرغلګرو په افغانستان یرغل تر سره کاوو ، قاري صاحب فیض محمد له خپلو جهادي ملګرو سره دخپل اسلامي هیواد ددفاع په خاطر دافغانستان شمال تـه تللی وو او پـه تخار ولایت کې یې جهادي دنده تر سره کوله ، نوموړی له خپلو ملګرو سره پـه کنـدز کـې محاصره پاته شو ، چې وروسته له دوستم سره دموافقې په نتیجه کې د نورو طالبانو غوندې ور سره وعده وشوه چې کندهار ته درسیدلو لار به ور کول کیږي .

خو دوستم دخپـل تـاریخي غـدر پـه لړ کـې کله چې طالبـان خلع سلاح کـړل ، کانتینرو تـه یې واچول او د شبرغان او بلخ په خوايي انتقال کړل ، قاري فیض محمد صاحب په دې مرحله کې دهغو کسانو له جملې څخه وو چې شبرغان ته په لاره په کانتینر کې ژوندی پاتـه شوی وو ، چې وروسته دشبرغان زندان تـه واچول شو ، د شبرغان پـه زندان کې چې کله د دوستم کسانو او سي آی اې د مامورینو لخوا دطالبانو دمشرانو پلټنه پیل شوه ، قاري صاحب هم دطالبانو دمشر په صفت وپیژندل شو چې امریکایانو لومړی د کندهار د هوايي ډګر کرغیړن زندان او وروسـې د کیوبـا د ګوانتانامو زندان ته انتقال کړ .

پـه ګوانتانامو زندان کې له یو نیم کال تیرولو وروسـته نوموړی دهغو لومړنیو بنـدیانو لـه جملې څخه وو چې راخلاص شو ، دکیوبا په زندان کې نوموړي ۲۰ سیپارې قرانکریم حفظ کړ چې پاتې لس سیپارې یې لـه خلاصون څخـه وروسته پوره کړ او پـه دې توګـه یې دقرانکریم د حفظ ویاړ ترلاسه کړ .

## دامریکا خلاف جهاد او شهادت یې

د ګوانتانامو له زندان څخه له راخلاصیدووروسته نوموړي یوځل بیا دامریکا په خلاف مسلح جهاد پیل کړ ، دامریکایي یرغل په دریم کال دخپلو هغومجاهدینو په مشرۍ چې دجهادي مدرسې له وختو یې ملګري وو د کندهار په معروف ولسوالۍ کې یې جهادي فعالیت پیل کړ ، وروسته یې په ارغسان ، شاولیکوټ او میانشین ولسوالیو کې جهادي فعالیت ته ادامه ور کړه په دې مهال نوموړی



ډېره موده د جنوب او جنوب غرب حوزو دعمومي نظامي کميسيون دمشر په حيث هم دنده اجراء کړه، چې دجهادي کاروانو په نظم او ترتيب کې يې مهم رول درلود.

د کندهار ولايت په لوړو يادو ولسواليو کې نوموړي ديوه مشر جهادي رهبر او لاربښود په حيث خورا ډېر خدمتونه ترسره کړل، دمجاهدينو جهادي صفوف يې منظم کړل، او ګڼ شمير مجاهدين يې مؤثر فعاليت ته اماده کړل، په شاوليکوټ کې له ۲ کاله خدمت وروسته نوموړی داسلامي امارت دمشر تابه لخوا دروزګان ولايت دجهادي مسؤل په حيث وټاکل شو، نوموړي په روزګان کې هم ټولو جهادي سيمو ته سفرونه وکړل، جهادي تشکيلات يې منظم کړل، خو دهمدې جهادي خدمت په ترڅ کې يې د ۱۴۲۸ هق کال د رجب دمياشتې په ۱۱ مه نيټه د چهار شنبې په شپه د شهادت ارمان ترسره شو، په دې نيټه نوموړي د روزګان ولايت دخاص روزګان ولسوالۍ په شالي ناوه سيمه کې دماښام د لمانځه له جماعت وروسته خپلو ملګرو ته ديني وعظ کاوو، چې ددښمن په هوايي ناڅاپي بريد کې په نښه شو او دشهادت لوړ مقام ته ورسيد.

انا لله وانا اليه راجعون

قاري صاحب پنځه زامن ترشا پرې ايښي چې نومونه يې محمد، احمد، حسن، عبدالرحمن او کوچنی سعد دي، سعد دنوموړي دشهادت نه څه موده مخکې پيدا شو، نوموړي د ټيلفون له لارې خپلې کورنۍ ته احوال ورکړ چې په نوي پيدا شوي زوی يې سعد نوم کيږدي، خو قاري صاحب خپل دغه کشري زوی په دنيا کې ونه ليد ځکه نوموړی په همدې جهادي سفر کې شهيد شو، الله تعالی دې وکړي چې په عقبی کې يې په جنت کې سترګې پرې يخې شي.

## د قاري فيض محمد سجاد صاحب د شخصيت په اړه

وړاندې وويل شول، چې قاري صاحب دخپلو ملګرو او متعلقينو ترمنځ يو غير متنازع شخص دی، شخصا ما يې تراوسه له کوم چا څخه بده خاطره نه ده اوريدلې، ټول ملګري يې دښه شخصيت، ښه اخلاقو او ديانت صفت کوي.

دديني علومو استاد مولوي حيات الله له قاري صاحب سره ډېر وخت نږدې پاته شوی، نوموړی وايي، قاري صاحب يو عجب دينداره سړی وو، مجاهد هم وو، دطريقت بيعت يې هم کړی وو، تبليغ يې هم نه هيراوو په تبليغي دعوت کې به يې دری ورځې ياڅه زيات وخت لګاوو حتی کله ناکله ترڅلورو مياشتو په تبليغ کې تلو، ديني علم يې هم نه هيراوو، حتی دسفر او جهاد په حالت کې به ورسره يو بکس وو چې کتابونه به په کې وو او له فرصت نه په استفاده يې مطالعه کوله، قاري صاحب به ويل چې داسلام په ټولو شعبو کې بايد عملا کار وکړو، اسلام بايد يوازې په جهاد يا علم کې منحصر نه کړو، بلکې ټولې شعبې په خپل ځای بايد مهمې وبولو او خدمت په کې وکړو.

مولوي حيات الله وايي د قاري صاحب يو بل بارز صفت زهد وو، له دنيايي عيش و نوش سره يې نه لګيده، ډېرې زياتې نفلي روژې يې نيولې، کله به چې له جهادي مدرسې څخه جهاد ته تلو نو امارت ور ته ګڼ شمير موټران ور کول، چې ده به په جهاد کې ترې استفاده کوله، مګر کله به چې بير ته راغی، ټول موټر به يې اړونده ادارو ته وسپارل او حتی ځانته يې يو موټر هم نه پريښود، په مدرسه کې يې دعادي طالب غوندې ساده ژوند کاوو.

د اسلامي امارت په تشکيلاتو کې دهرات پخواني والي او دفوائد عامې پخواني وزير مولوي احمدالله مطيع وايي: قاري صاحب له الله تعالی څخه ويريدونکی انسان وو، ديانت يې ډېر ښه وو، په خپلو وظايفو کې زحمت کش او نه ستړی کيدونکی وو او که رښتيا ووايم بې جوړې سړی وو.

ملاخليل احمد وايي: په ياديږي يې کله به مو چې په موټر کې سفر کاوو، قاري صاحب به په ډېر خواږه غږ تلاوت کاوو، او دحضر په مهال هم دقرانکريم دتلاوت ډېر پابند وو.

مولوي حيات الله چې دامريکا خلاف جهاد کې له قاري صاحب سره نږدې پاته شوی دی وايي: قاري صاحب د جهادي ژوند يو ځانګړی پروګرام درلود، ملګري يې عبث وخت تيرولو او بې حاصله ګپ شپ ته نه پريښودل، دور ځې به يې دری وخته ديني وعظ او بيان کاوو او دا به يې دملګرو ترمنځ ديوه ځانګړي ترتيب له مخې تقسيم کړی وو، د سهار او ماښام مسنون اذکار يې په ملګرو زده کول او عملي کول، که به مجاهدين ملګري کومې خوا ته روان وو، او په لوړ ځای به ختل نو

قاري صاحب به غبر کړ ، هلئ دلوړ ختلو ذکر الله اکبر شروع کړئ او که به په کوم ځای ښکته کیدو نو غبر به یي کړ سبحان الله وایاست .

دغــه راز د ډوډۍ د پیـــل او پـــای ، مجلس ، خوب او هر ډول حالاتو اذکار یي همیشنی معمول وو ، او په ملګرو یي هم زده کول ، که په مجاهدینو کې د چا سم قرأت نه وو زده ، نو مجبورول یي چې له نورو قاریانو ملګرو څخه قرانکریم سم زده کړی ، لمونځ ور ته تیر کړي تر څو یي عبادت سم شي .

خپلو مجاهـدینو ملګـرو تــه یــې پــه همیــشنۍ مـذاکره کــې د ژونـد د هــر اړخ آداب ور ښودل ، دډوډۍ اداب ، دمجلـس اداب ، له مشرانو او کشرانو سره د ګوزارې آداب او داسې نور مسنون آداب یې ملګرو تــه ور ښودل او عملي اړخ تــه یــي دومــره متوجه وو ، که به چا پـه چپ لاس ډوډۍ پور ته کړه سمدستي یې ور باندې غبر کاوو چې د ډوډۍ خوړلو مسنونه طریقه په ښي لاس خوراک دی .

د قاري صاحب دغه اصلاحي پروګرام پـه ډیره مسلکي طریقه اود نیک اخلاقو پـه چوکاټ کې وو چې پـه هیچـانـه بوج کیــده ، بلکــې اکثــره داســې علمــاء او مدرسین چې له ده څخه په علم او عمر کې زیات وو ، له ده څخه یې زده کړه کوله ، دده پــه ملګر تیــا یــي فخــر کــاوو ، ځکــه دقـاري صــاحب جهـادي ملګر تیـا یـوازې جهاد نه وو ، بلکې یو اصلاحي پروګرام وو که به چا وخت ور سره تیر کړ نو له جهادنه سوا به یې د شخصیت داصلاح په برخه کې ډیره ګټه کړې وه .

د قاري صاحب دجهادي ملګرو شمیر خورا زیات وو ، خو د هر یوه یي نه یوازې نوم زده وو بلکې د کورنۍ د غړو ، والدینو او شخصي ژوند پوښتنه یي هم ترې کوله که به کوم ملګری له کور څخه سنګر ته راستون شو ، قاري صاحب به د یوه مشفق قریب غوندې د ټولو خپلوانو پوښتنې ترې کولې ، چې دا ډول صمیمیت اوس په خورا لږو خلکو کې لیدل کیږي .

مولوي حیات الله صاحب دقاري صاحب د ژوند او شخصیت په اړه خورا جالبې خاطرې لري ، د لیکنې داوږدیدو له امله به په دې کفایت وکړو ، چې قاري صاحب دنبي کریم صلی الله علیه وسلم دطریقې مطابقت په جهاد کې په اعمالو او عباداتو سره جنګ کولو ته ډیره توجه درلوده ، نوموړي به چې د وسلو اومهماتو د اخیستلو لپاره دامارت مشر تابه تـه د پیسو پیشنهاد کـاوو ، نو د وسلو تر څنګ به په لست کې د مجاهدینو د مسواکونو مصرف هم لیکل شوی وو ، ځکه نوموړي به په جبهه کې خورا ډیر مسواکونه له ځان سره ساتل تر څو مجاهدین لـه دغـه مسنون عمل څخه بې برخې نه شي .

باور وکړئ ما چې کله دشهید قاري صاحب فیض محمد سجاد د شخصیت په اړه دده دملګرو څخه ځیني خاطرې واورېدې او بیامې دلیکلو په مهال له ځانه سره لحاظ کړې ، نو بې اختیاره مې له ستر ګو اوښکې وبهیدې ، دا پیښنه ماتـه دقاري صاحب د دیانت یوه ځانګړ تیاښکاره شوه ، ځکه زه خپل دلیکوالۍ په ژوند کې تر اوسه له داسې پیښې سره نه وم مخ شوی ، سبحان الله ، د فتنوپه دې عصر کې دومره دیانت ساتل ، چې تش یاد یې پـه یوه سخت زړه باندې اثر کوي او اوښکې ترې راباسي ، خو بیا مې له ځان سره وویل

این سعادت به زور بازو نیست

تانبخشد خدای بخشنده

راځئ دعاء وکړو ، چې متعال رب تعالی د رحمت دخپلو بې پایه خزانو څخه په موږ اوسنیو مجاهدینو باندې هم رحم وکړي ، اخلاص ، دیانت او صبر مو نصیب کړي ، تر څو د دنیا او اخرت فائزین شو .

رحمه الله تعالی



# برماکې دبشریت ضد ستر دولتي اقدام اودنړۍ دردوونکې چوپتیا

حسن زوی

د بودایې وحشي دولت او ولس له لوري چې د برما پر مسلمانانو د تېرو ۲ کلونو راهیسې د خورا سترو ظلمونو کومه نوې لړۍ پیل شوې چې په کې یې له ۳ سوو زرو نه زیات مسلمانان ګاونډیو هېوادونو ته ګډه اوله ۱۰۰ زرونه زیات په هېواد کې دننه د خپلو کورونو او سیمو نه بې ځایه شول ، د مېرمنو او کوچنیانو په شمول نېږدې ۵۰ زره مسلمانان شهیدان ، د ۱۰ زرو نه زیات ژوندي ورک ، په زرونو مسلمانې مېرمنې بې عفته ، او په سونو مدرسې او جوماتونه وران او د مسلمانانو غونډې غونډې ابادې سیمې لوټه شوې د ظلم او وحشت پدې ۲ کلنی لړۍ او ددې نه وړاندې چې په ۱۷۸۵ کې بودایانو د مسلمانانو ازاد اسلامي هېواد اراکان قبضه او بیا په اراکان او ټولې برما کې پر مسلمانانو تر ننه کوم ظلمونه وکړل د تېرو ۲ کلونو په اوږدو کې مادخپل توان سره سم پدې اړه مفصلې لیکنې کړې اوپکې مې مکرراً دې ټولو یادونه کړې نوپدې بې چاره مسلمان مظلوم ولس د تېرو تر سره شوو ظلمونو له رایادولو تېرېږو او غواړم چې پدې هېواد کې په دولتي سطحه د مسلمانانو پر ضد دوحشت اوظلم نه ډک په نوي اقدام یو څو کرښې ولیکم .

د برما د ټولو مسلمانانو پر ضد په دولتی سطحه دا د بې ساری وحشت او ظلم نه ډک اقدام دا دی چې پدې هېواد کې د مارچ د ۳۰ مې نېټې نه دروانې میاشت یانې اپریل تر ۱۰ مې نېټې پورې په دې هېواد کې د دولت له لورې دبرما دټول نفوس دمعلوموليه موخه په تر سره شويو سر شمېرنو کې پدې هېواد کې له پېړیو راهیسې اوسېدونکې مسلمانان له سر شمېرنې نه بهر او ددې هېواد دداتباعو په صفت یې له منلوڅخه انکار کړی.

له برما څخه خپرېدونکې ((ایراوادي)) نومې جریدې پدې اړه په خپل یو تازه راپور کې لیکلي چې د سر شمېرنې د تر سره کېدو نه لادمخه د برما د کورنیو چارو وزارت اعلان کړی و چې ۳۰ کلو نه پس په نوې سر شمېرنې کې به په هېواد کې په شتو روهنګیا مسلمانانو کې یو هم شامل نکړای شي ځکه چې هغوئ دبرما اصلي اوسېدونکی نه بلکې په خټه بنګالیان دي ، د سر شمېرنې نه پس به د دولت د پالیسی له مخې بنګالیانو ته په برما کې د اوسېدو اجازه نه ور کول کېږي بلکې ټول به له هېواده بنګله دیش ته شړل کېږي،،

په راپور کې وړاندې راغلي چې روهنګیا مسلمانان په سر شمېرنې کې نه شاملول او بنګله دیش ته یې د شړلو پدې دولتی اعلان د بنګله دیش دولت هیڅ غبر ګون ښکاره نکړ حال دا چې میاشت وړاندې د بنګله دیش لومړۍ وزیرې حسینه واجد برما ته د سفر پر مهال د دې هېواد د لوړپوړو چارواکو سره د لیدنو پر مهال د روهنګیا مسلمانانو د ستونزو په اړه غږېدلې وه .

د ملګرو ملتونو اداري او د بشر د حقوقو نړیوالو او سیمیزو ټولنو د برما د دولت نه وغوښتل چې له پېړیو راهیسي په برما کې مېشت روهنګیا مسلمانان دې د برما دولت په سرشمېرنې کې شامل کړي ؛هغوئ چې ددې هېواد قانوني اتباع دي دا حق دي یې دولت ومني او د تابعیت د حق نه دې یې نه بې برخې کوي خو د برما دولت داغوښتنه په ډېرې سپین ستر ګی رد کړه او اعلان یې وکړ چې ددې نوې تر سره کېدونکې سر شمیرنې نه پس به د هېواد ټولو اتباعو ته الیکترونیکي تذکرې ور کول کېږي دولت تصمیم نیولی چې روهنګیا مسلمانانو ته به داتذکرې نه ور کول کېږي ؛ ددې پروګرام دعملي کېدونه پس به دوئ ټول له هېواد نه ویستل کېږي یا به د نړیوالو ادارو له لورې جوړ شوو کمپونو ته ټول راټول او پکې قید کېږي .

د هېواد نه دمسلمانانو د شړلو لپاره د برما دولت چمتووالی بشپړ کړی دولت دا اعلان هم کړی و چې د سر شمېرنې په ټولو ورځو کې به د مسلمانانو هیڅ عذر د منلو وړ نه وي او یو مسلمان ته به هم د

شپې یا دورځې د کورنه د راوتلو اجازه نه ور کول کېږي تر څو د سر شمېرنې عملي کې خنډونه رامنځته نشي.

د سهيل ختيځې آسيا د بشر د حقوقو (( فورټي فای رايټس )) نومې اداري په خپل يو خپور کړي راپور کې د برما دولت په اوسني اقدام خپل تشويش ښکاره کړی او ښه په روښانه ټکو يې منلی چې روانه سر شمېرنه د برما دمظلومومسلمانانو پر ضد ستره توطئه ده، د نوموړې اداري مشر (( ميتو اسمت )) ويلي چې سر شمېرنه او د تذکرو ور کولو پروګرام د مسلمانانو پر ضد په نسلي او مذهبي تعصب ولاړ خطرناک پلان دی چې نړۍ يې بايد د انسانيت پر ضد اقدام وګڼي، هغه زياتوي چې د دولتي پلان له مخې به د برما اوسېدونکو ته د ګلابي رنګ اليکترونيکي تذکرې ور کول کېږي، تذکره لرونکي وګړي به د هېواد هر ګوټ ته سفر کولای شي او هم به د هېواد نه بهر د تللو په موخه ددې تذکرو له لارې پاسپورټ تر لاسه کولای شي او څوک چې دا تذکره ونلري نو نه به په هېواد کې دننه د يو کلي نه بل کلي ته د تللو اجازه لري او نه به د هېواد نه بهر د تللو لپاره د تر لاسه کولو حق ولري، د بشر د حقوقو دا اداره وايي چې د برما د دولت له لوري د سر شمېرنې پيل او ور پسې بيا د تذکرو د ور کولو پلان د روهينګيا مسلمانانو د بشري حقوقو پر ضد هغه ستر اقدام دی چې هدف يې د برما نه د مسلمانانو بشپړه تصفيه ده.

د برما د دولت له دې وړاندې په ۱۹۸۲ کې هم يوه سر شمېرنه کړې وه چې هغه هم په مذهبي او نسلي تعصب ولاړه سر شمېرنه وه او پکې د برما روهنګيا مسلمانان ددې هېواد قانوني اتباع نه وګڼل شوي او نه د برما د اصلي نفوس برخه ګرځول شوي وه خو ددې هر څه تر څنګ مسلمانان په برما کې اوسېدل؛ دولت نه د مسلمانانو د ويستلو اعلان کړی وه نه او نه يې هم پدې اړه کوم عملي اقدام کړی و خو له بده کرغه چې داځل د سر شمېرنې او د تذکرو د ويش د پروګرام د پيل کېدو نه لا د مخه د برما دولت اعلان کړی چې ددې پروسې د تکميلېدو نه پس به روهنګيا مسلمانان د برما اتباع نه ګڼل کېږي او جبراً به له دې هېواده ويستل کېږي.

اوس د ملګرو ملتونو اداري اعتراف کړيدی چې په ټولې نړۍ کې د برما مسلمانان هغه اقليت دی چې د نړۍ د بل هر اقليت نه د زيات ظلم ښکار دي.

د برتانې دولت د برما د دولت اوسنۍ پرېکړه غندلې او ويلي يې و چې د برما دولت بايد د نړيوالو اصولو سره سم داسې سر شمېرنه تر سره کړي چې پکې په برما کې اوسېدونکو د هر مذهب؛ نسل؛ او ژبې سره تړاو لرونکو وګړو ته د شموليت حق ور کړل شي.

د ملګرو ملتونو د اداري په شمول د بشر د حقوقو نړيوالو ډېرو ادارو د برما د دولت نه غوښتي وو چې له پېړيو راهيسې په برما کې ميشت مسلمانان دې په اوسنۍ سر شمېرنې کې شامل او ور ته دې نوې اليکترونيکي تذکرې ور کړل شي خو د برما دولت نه د چا د احتجاج پروا و ساتله او نه يې هم د چا پر غوښتنې غوږ وګرولو ځکه چې د برما دولت د نړۍ په نبض پوه او له دې ښه خبر دی چې د مسلمانانو په هکله د نړۍ ارادې څه دي؟

کوم اسلامي هېواد کې چې په څو انسانانو کوم کوچنی ظلم وشي نو د بشريت خواخوږي امريکا او نور لويديځ متحد کېږي؛ د ملګرو ملتونو د اداري نه منظوري اخلي او ددې لپاره چې پر څو انسانانو د تر سره شوي ظلم پوښتنه وشي په هغه هېواد يرغل کوي؛ دولت يې ور ړنګوي، اباد ښارونه او کلي يې په کنډوالو بدلوي او پکې په سونو زره بې ګناه انسانان وژني خو چې دبشر دحقوقودساتنې همدې ستر واتلانو په برما کې په تېر ۲ کلن ستر بشرۍ ناورين ستر ګې پټې کړيدي؛ نه يې وحشي بودايان د سزاوړو بلل او نه يې هم د ظالم دولت پر ضد کوم کوچنی اقدام وکړ نو د برما دولت ته دا پيغام ور کړل شو چې د برما د مسلمانانو پر ضد په هر ظلم او وحشت کې يې نه يوازې دا چې لاس خلاص دی بلکې امريکا او غربي ټوله نړۍ يې تر شا هم ولاړه ده.

داويل پر ځای دي چې د برما د دولت له لوري د مسلمانانو پر ضد د بې ساری ظلم او وحشت نه ډکه اوسنۍ پرېکړه د امريکا او لويديځ په لمسون نه بلکې د دوئ په حکم شوېده او تر څو يې چې دبشريت ضد دې ستر جنايت د مخنيوي لپاره حقيقي ګامونه نه وي پورته کړي د دوئ له لوري د غندنې څو ټکي يا د خفګان او تشويش اظهار به د نفاق نه ډکه د مسلمانانو په ستر ګو کې د خاورې اچولو يوه ناکامه هڅه وي او بس.

# د امریکایي سناتورانو او افغان جنګسالارانو د فساد ګډه شبکه

د پنټګان یو راپور په ډاګه کوي، چې په افغانستان کې د امریکا د جګړې لګښت تر ۷۱۰ میلیارد ډالرو اوښتی دی. د دغو پیسو ډېره اندازه یې د هغو جنګسالارانو لاس ته لوېدلې چې لومړی یې د طالبانو پر ضد جګړه په اجاره واخیسته او بیا یې شخصي کمپنۍ جوړې کړې، امنیتي تامینات او افغان حکومت داري یې ټېکه کړه.

د راپور خپرونکې رسنۍ بلومبرګ لیکلي، هغه بدنامي چې افغان دولت یې د فاسد دولت په توګه په غاړه ګرځوي، د هغو جنګسالارانو له لاسه ده، چې د امریکا تر ټولو نېږدې متحدین پاتې شوي او تر کماندویي رول وروسته یې ملکي حکومت پر غمل کړی دی.

په افغانستان کې ۱۲ کلن جنګ د ګوتو په شمېر امریکایي سناتورانو او افغان جنګسالارانو شریکه پروژه وه، چې هم یې د امریکا اهدافو او هم افغان دولت اعتماد ته بې کچې زیان واړاوه.

د راپور چمتو کوونکي اداره په ډاګه کوي چې؛ په افغان جنګسالارانو د امریکا بې کچې اعتماد ددې سبب شو چې جنګسالاران په جرمي شبکه بدل شي، حکومت او افغان سوداګرۍ ته لار ومومي او ولسمشر کرزی اړ شي، چې پر دوی تکیه وکړي. نه یوازې افغان جنګسالاران د خصوصي امنیتي کمپنیو په چوکاټونو کې د امریکا لپاره محترم و، بلکې په ملکي چارو کې هم ورباندې بې کچې اعتماد شوی دی. د امریکا د دفاع وزارت وایي، امریکا نه یوازې د قراردادونو په برخه کې سالم مدیریت، نظارت او حساب کتاب نه درلود، بلکې بې اندازې او غیر منظمو مرستو یې افغان جنګسالاران دومره وپړسول، چې امریکایې په بېرته مخنیوي او کنترول کې پاتې راغله، د راپور د څېړونکو په باور امریکا له دې کبله چې په افغانستان کې د مېشتو ځواکونو تامینات یې له اکمالاتي اړخه له خنډ سره مخ نشي، د جنګسالارانو په ناړامیو یې ستر ګې پټې کړې. له افغان جنګسالارانو سره د امریکا دارابطه په پنجشیر کې د شمالي ټلوالې څو مشرانو ته د ډالرو د ډکو بکسونو له ډالۍ کولو راپیل شوه، چې طالبان کمزوري کړي، خو دغې یارانې سوکه، سوکه د مرموزې سوداګرۍ ربښې جوړې کړې. افغان څارونکي وایي، له جنګسالارانو سره د امریکا د حکومت او سنا ډېر مهم غړي اړیکې لري او په لویو قراردادونو کې یې افغان جنګسالاران د وفادارو ملګرو په توګه ستایلي دي.

د بلومبرګ د راپور جزیات په ډاګه کوي، چې د دوه میلیارده امریکایي ډالرو یو قرارداد یوازې اتو افغان امنیتي کمپنیو ته ور کړل شو. کله چې په ۲۰۱۱ کې افغان ولسمشر د امنیتي کمپنیو په منحل کولو پسې مټې بډ وهلې ومونډل شول، چې اکثره امنیتي کمپنۍ د پخوانیو جنګسالارانو او په تېره د نظار شورا د مهمو غړو وې، چې دا مهال د افغانستان په سیاسي صحنه کې د شتمنو او مخکښو سیاستوالو په توګه ونډه لري.

له افغان تحقیقي مراکزو سره داسې اسناد او شواهد پراته دي، چې زباتوي ډېری امریکایي سناتوران او د حکومت مهم غړي حتی تر وروستیو انتخاباتو پورې د افغان جنګسالارانو د سیاسي ونډې او موقفونو لپاره لابي کوي. په دغو اسنادو کې داسې کره یې هم شته چې په واک کې د ځینو قوماندانانو د شراکت لپاره کرزی په وار وار د امریکایي چارواکو له خوا تهدید شوی دی.

افغان شنونکي وایي، د امریکا له ملاتړه برخمن لوټماران د کابل حکومت په اتیا سلنه دولتي واک ولکه لري او له دې کبله چې مالي خزانې یې قانوني مشکلات لري، نو هڅه کوي په دولت کې د فساد پر ضد د مبارزو هلې ځلې شنډې کړي.

که څه هم د پنټګان دغه ریپوټ له یو ډېر مهم راز څخه پرده پورته کوي، خو په داسې شرایطو کې چې افغانستان د سیاسي واک د نرم لېږد له حساسو شېبو تېرېږي، ددې راپور خپرېدلو ګڼ سوالونه راپیدا کړي دي.

آیا د امریکا ملکي حکومت او نظامي اداره د افغان سیاسي بهیر په ملاتړ کې مختلف دریځونه لري او یو بل نفيي کوي او که امکان دی په دې توګه له واکه تلونکي کرزي ته چې لاهم په سیاسي صحنه کې د محوریت رول ته ځان جوړوي د مشروعیت ! یوه هڅه وګڼل شي؟

داچې سږنی کال د خپل ځانګړي زماني اهمیت له مخې د مجاهدینو د ۱۳ کلن جهاد په تاریخ کې تر ټولو مهم کال ګڼل کیږي نو مجاهدین به د تیرو کلونو په نسبت په فوق العاده توګه د دې کال د پسرلنیو عملیاتو د پلانولو لپاره له ډیرو پیچلیو محاربوي تکتیکونو څخه کار اخلي، داسې محاربوي تکتیکونه چې له یوې خوایې دیر غلګر دښمن په ځپلو کې اغیز زیات وي او له بلې خوا ور کې د ولسي وګړیو د ځاني او مالي تلفاتو په ټینګه مخنیوی وشي.

د خیبر په نوم جهادي پسرلنیو عملیاتو طراحي د اسلامي امارت د تکړه او مسلکي ماهرینو او جهادي سنګرونو د زړورو پوځي قومندانانو لخوا شوې چې د هیواد د هرې سیمې او برخې ټول محیطي او موسمي شرائط ور کې په دقیقه توګه په پام کې نیول شوي او د ټاکل شوې پلان له مخې به هر ځای په خپلې د قیقې نیټې کې پلي کیږي. د اسلامي امارت مجاهدین چې یواځې د الله د رضا، د خپل هیواد له حریم څخه د دفاع او هیواد والو د تحفظ لپاره خپل سرونه قربانوي، له خپلو ټولو مسلمانو هیواد والو څخه په درناوي غوښتنه کوي چې د دښمن په ځپلو او وهلو کې ور سره مرسته وکړئ، دهغوی په لیکو کې له کار کولو څخه ډډه وکړئ، د هغوی له پوځي او استخباراتي تجمعاتو او مر کزونو څخه لیري اووسئ او د الله تعالی د رضا، دخپل هیواد د دفاع او خپلو مجاهدینو ورونوسره د دیني تعاون په لاره کې خپل مسؤلیت سر ته ورسوئ!

همدارنګه د کابل د ښاریدلې اداري ټولو کار کوونکو ته یوځلې بیا اعلانوو چې د یرغلګرو کفارو له ملاتړ نه په لاس اخیستو سره د خپلو مجاهدینو تر څنګ ودریږئ. د دښمن له لیکو راووځئ، ددښمن له لیکو څخه د راوتلو په صورت کې اسلامي امارت در ته دعز تمن خوندي او پر أمن ژوند تیرولو ډاډ در کوي، اوستاسي حمایت د ځان اخلاقي فریضه ګڼي. د افغانستان اسلامي امارت په داسې حال کې چې د لوي الله په نصرت او د خپل مجاهدولس په بی ساری ملاتړ په افغانستان کې د ټولوبهر نیویرغلګروځواکونو په بشپړ شکست پوره باور لري له دې اسلامي هیواد څخه د ټولویرغلګروځواکونو په بلاقیداوشرطه وتلو ټینګار کوي او دغه هدف ته د رسیدو لپاره دوسله وال جهاد تداوم ضروري بولي باید یوځل بیا په ډاګه کړو چې په هیواد کې د کفري یرغلګرو په وجود کې زموږ دین او فقهي مراجع موږ ته دیرغلګرو په وړاندې دمسلح جهاد امر کوي او جهاد فرض عین بولي بناء هغه اشغالګر او داخلي ملګري یې چې فکر کوي دبهرنیو ځواکونو دشمیر په کمولو سره به زموږ جهادي اراده کمزوري شي باید په دې پوه وي چې داسلامي اساساتو له مخې په دار اسلام کې لکه څنګه چې زر ګونو اشغالګرو ته داوسیدلو جواز نشته، محدود او د شمیر له اړخه کم اشغالګر هم کټ مټ همدا حکم لري چې له اسلامي خاورې شړل یې د ټولو مسلمانانو وجیبه ده.

بناء دافغانستان اسلامي امارت هوډ لري چې دالله تعالی په نصرت اودخپل مسلمان اولس په ملاتړ به د کفري یرغلګرو دوروستي عسکر دوتلواواسلامي نظام ټینګولو تر مهاله د جهاد مقدسې فریضې ته ادامه ور کوي إن شاءالله. الله اکبر، الله اکبر، الله اکبر ولله الحمد والسلام

داسلامي امارت رهبري شوری

۱۴۳۵/۷/۹هـق – ۱۳۹۳/۲/۱۸هـش - ۲۰۱۴/۵/۸م

## دسپین کاروان ستړي مزلونه کتاب له چاپه راووت.

دغه کتاب چې دهیواد دتکړه دیني عالم او پیاوړي لیکوال ښاغلي مولوي عاصم حجازي په قلم لیکل شوی ، په ښکلي قطع اوصحافت چې ۱۷۸ مخونه لري تازه له چاپه راوتلی .
دنوموړي کتاب په قیمتي پاڼو کې چې اصلا دپکتیاولایت دجهادي امورو دارزوني اودولس دعمومي حالت دلیدلو او دستونزو داوریدلو په موخه دیوې خوږې اودلچسپه سفرنامې په بڼه لیکل شوي ، له ځان سره نور علمي ، ذوقي مطالب اودنوموړي ولایت دیوشمیراتلانو تاریخي یادوني او تذکري هم لري چې نوموړي سفرنامې ته یې زیات رنګ او درنښت ور کړي .
ښاغلي عاصم حجازي خپل دغه قیمتي اثر دخپلې خاصې مینې له کبله دلوګر ولایت یوه مشهورمبارز علمي اوجهادي شخصیت مرحوم مولوي موسی جان رح ته ډالی کړی ،دغه راز په نوموړي کتاب دتقریزونو په ډول دهیواد مشهورجهادي شخصیت ، ښاغلي مولوي سراج الدین ( خلیفه ) نامتوجهادي اوسیاسي شخصیت محترم مولوي عبدالطیف منصور، محترم قاري عبدالولي صدیقي ، محترم عزیزي ، محترم رشیدي او محترم فضلي په زړه پوري لیکني کړي
هیله ده ، نوموړي تاریخي اثر دمینه والو جهادي اوتاریخي تنده خړوبه ، اودنورو مجاهدینو لپاره دیوه الهام په څیرچې هغوی هم خپلې کارنامې اودهیواد جهادي تاریخ ترخپلې وسې دتاریخ غیږې ته وسپاري ځای خپل کړي ، امین

srak

## دخیبر په نامه دنویو عملیاتو دپیلیدو په هکله داسلامي امارت درهبري شورى اعلامیه

بسم الله الرحمن الرحيم

الله اکبر الله اکبر الله اکبر ولله الحمد

انفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۚ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ (۴۱) التوبه

د افغانستان مجاهد او په دین مین ولسه !

ستاسي د ۱۳ کلن جهاد، سر بښندنو او قربانیو له بر کته نورې ان شاء الله هغه شیبې ډیرې رانیږدې شوې چې وحشي یرغلګر مو د هیواد له سپیڅلي حریم څخه پښې سپکې او الله تعالی راباندې د خپل اسلامي هیواد د مکملې آزادي او خپلواکي نعمت ولوروي.

ولله العزة ولرسوله وللمؤمنين .. الله اکبر الله اکبر الله اکبر و لله الحمد وَيَوْمَئِذٍ يَفْرَحُ الْمُؤْمِنُونَ بِنَصْرِ اللَّهِ يَنصُرُ مَن يَشَاءُ...

مسلمان مجاهد ملته !

د دې لپاره چې نور موهم د الله تعالی رضا او له خپل اسلامي ټاټوبي څخه د دفاع په لاره کې ایماني مسؤلیت په بشپړه توګه سر ته رسولی وي دادی یوځلي بیا د نوي عملیاتي کال په رارسیدو سره د یرغلګرو او د هغوی د بي مروته ملاتړو په خلاف د خیبر په نوم خپل پسرلني عملیات اعلانوو!

دخیبر غزا چي داسلام دستر پیغمبر محمدمصطفی صلی الله علیه وسلم له لوري دهجرت په اوم کال داسلام له دښمنانو سره تر سره شوه اوپه نتیجه کې یې ددښمن مظبوطي کلاګاني اولوی لوی مراکز فتحه شول او کفار په بشپړه توګه له سیمي ووتل مسلمانانو ته ډیر زیات غنیمتونه په لاس ورغلل مورهم سږ کال په همدي نامه نیک تفاول کوواوله الله تعالی نه امیدلرو چي نوربه مو هیواد په بشپړه توګه له کفارو ازاداولوی لوی مراکزبه یې هم فتحه شي انشاءالله تعالی. د خیبر په نوم دغه پسرلني عملیات به د ټول هیواد په سطحه دراتلونکي دوشنبي په ورځ دروان ۱۴۳۵ هجري قمري کال د رجب المرجب دمیاشتې په ۱۳ نیټه چې د۱۳۹۳هجري شمسي کال د ثور دمیاشتې له ۲۲او د ۲۰۱۴م کال د می د میاشتې له ۱۲ نیټې سره سمون خوري د سهار په ۵ بجو د الله اکبر په ویلو سره پیل کیږي.

الله اکبر الله اکبر الله اکبر ولله الحمد.

دتیر په څیر به د دغومبار کو جهادي عملیاتولومړني مستهدفین (په نښه شوي) یرغلګر بهرنیان، په مختلیفو نومونو د هغوی اړوند جاسوسان، د هغوی پوځي او ملکي قرار دادیان او تر هر نامه لاندې له هغوی سره مربوط کار کوونکي، ترجمانان،اداري کارمندان او دهغوي لوجیستیکي اکمالوونکي پرسونل وي.

همدا راز به د خیبر په نوم جهادي پسرلنیو عملیاتو په نښه شوي کسان د کابل رژیم ټول لوړپوړي چارواکي ،د کابینې غړي، پارلماني وکیلان ، امنیتي منسوبین په دفاع او داخله وزار تونو کې د بهرنیانو ملاتړي افسران ، په عدلیه وزارت او سترې محکمې کې د مجاهدینو محکوموونکي څارنوالان او قاضیان او همدا راز د ملي امنیت په نوم ریاست کې د مجاهدینو تعقیبوونکي او ځوروونکي جاسوسان وي. د تیر په څیر به دخیبر په پوځي عملیاتو کې له پر مختللیو محاربوي تجربو څخه کار اخیستل کیږي، کفر ځپونکي استشهادي عملیات،ددښمن په صف کې دننه نفوذي بریدونه،دغلیم لوی اونسبتاخوندي مر کزونه په درنوو سلواولیري وییشتونکو توغندیوویشتل او د دښمن د مورال لویدلو ځواکونو په تجمعاتو مخامخ تهاجمي تعرضونه به د دغو پسرلنیو عملیاتو له مهمو تکتیکونو څخه وي.

د دخیبر په نوم کلنیو جهادي عملیاتو د پلي کیدو نقاط به د بهرنیو یرغلګرو ځواکونو پوځي تجمعات ، ديپلوماتیک مر کزونه سیار کاروانونه او همدا راز له هغوی سره د ملاتړ کوونکو داخلي مزدورانو پوځي مر کزونه ، د دفاع ، کورنیو چارو، ملي امنیت اواربکی اجیرانو مربوط ثابت تأسیسات او د هغوی ګرځنده کاروانونه وي.

پاتې دپښتې په دریم مخ